# کهکشه

تدوین او سریزه

د

گل افضل ټکور

دغني او اجمل دزوکړی دکلیزو
په مناسبت علمی ادبی سیمینار

# کره کتنه

(دزیری جریدی د ۱۳۵۵-۱۳۵۶ هش کلونو ددوو
اقتراحگانو مقالی)

ټولوونکی




افضل ټکور




خپروونکی

## دقومونو او قبایلو وزارت

دخپرونو او فرهنگی چارو ریاست

۱۳۶۴

دکتاب نوم : کره کتنه
مــــدون : افضل ټکور
تیــــراژ : (۲۰۰۰)
مهتمــــم : تاج محمد یاری
کـــــال : ۱۳٦٥

دچاپځای : دولتی مطبعه

## اهدأ

د هیوادپیاوړی لیکوال زلمی هیوادمل ته چې د
کره کتنې دغه مقالې په خپله وخت کې د هغه په زیار
کښلې شوې او خپرې شوې دي

افضل ټکور






# دسرخبری

په پښتو زړو او نویو ادبیاتو کې دکره کتنې ،نقد او ادبـی قضاوت نښې ،نښانې لیدل کیږي او پښتنوعلماوو له پخوا څخه دې خواته هم توجه کړې ده ،خو هسې ترقي چې دې فن دپښتو په ګاونډیو ژبو کې کړې ،په پښتو کې هومره پرمخ نه دی تللی .

که په پخوانیو ادبیاتو کې دنقددرېښو له څیړلو ورتیر شو ، په معاصره دوره کې له کابو پنځوسوکلونو را پدې خوا لر او بر پـه موقوتو خپرونو کې دنقد پـه بابخبرې کیږي ،ددې‌فن نظریاتې خواوې څېړل کیږي او ورسره دعملي نقـدخواته هم توجه کیږي .ځینې مهـم مقالات ،رسالې او کتابونه هم ددې‌فن دزده کړې ادابو اونورو خصایصو په باب لیکل شوي دي زموږ مشرانوپوهانو ،لکه :لوی استاد علامه حبیبی ،فاضل استاد پوهاند رشاد ،محترم‌استاد پوهاند رښتین ،استاد خادم

استاد بینوا ،استاد الفت ، محترم‌استاد پوهاند دکتر ت.ن محترم‌استاد س.ش ،سر محقق محمد صدیق روهی‌سرمحقق دوست شینواری محتـــرم دانشمند بریښ ،او په لرو هغو کی‌مرحوم‌استادکامل مومندمرحوم کاکا۔ جی صنوبر حسین مومند ،مـرحـوم‌محمد نوازختېك ،قلندرمومند ،مرحوم سر فراز خان عقاب ختېك دیادونـی‌وړ هغه خلك دی چی دنظری اوعملی نقد په خصوص کی یی ښه کارونه کړی دی .په ځوان کول کی گران انځور او گران لطیف بهاند دوی‌داسی‌څېری دی چی په دی فن کی دترقی او پرمختگ ډیر امیدونه ورته کېږی،ددوی ددی ساحی کړی کارونه موږ ته دا امید را کوی چی زموږ دغـه گران ځوانان به په دی خصوص‌کی نور مهم‌خو سالم‌او جوړوونکی کارونه وکړی .

په پښتو موقوتو خپرونو کی کابل‌مجلی او لار مجلی په خاص ډول د کره کتنی لپاره خپلی خاصی گنـــی‌او پاڼی وقف کړی دی ،نورو خپرونو هم کله نا کله په دی لاره کی‌هڅی‌کړی‌دی ،دگوتو په شمار څوکتابونه هم دنقد په باب خپاره شوی دی .له دغو ابتدایی هڅو سره سره دی ته اړه لیدل کیده او اوس هـــم‌لیدل کېږی چی دنقد دتیوری او هم دعملی نقد دآدابو په خصوص کی‌ډیر کارونه وشی ،دا ځکه چـی :

١ـ دکره کتنی او نقد ټولو علمی‌معیارونو زموږ په ژبه او ادب کی ځای نه دی نیولی .

٢ـ دعملی نقد لپاره څنگه چی‌ښایی زموږ په ادب کی لاره هواره نه ده .

٣ـ اوس هم پر یو اثر نقد له‌شخصی دښمنی سره مترادف کار گڼل کېږی .

٤ـ پر یو اثر نقد دادارو مسوولین‌داسی انگیری ،چی گوندی دغه یا هغه اثر باید نه وای چاپ شوی ،ځکه چی نقد پری شوی دی ؟

٥ـ ځینی نقدونه دنقد پرمعیارنه‌دی برابر .

٦ـ شخصی عقدی او شخصی تما یلات په ځینو نقدونو لاس بری لری.

٧ـ ځینی نقدونه دنقادانو لـــه علمی صلاحیته لوړ وی .

٨ـ ځینی کسان نقد دځان ښوونی‌اود خپل صلاحیت دڅرگندونی پـه

منظور کوی نه داصلاح اودژبی او ادب دبهبود په منظور .

۹ـځینی کسان نقددنورو دتحقیرولواو تعجیزولو یوه وسیله گڼی .

زموږ په ژبه او ادبی څیړنو کیدغو مشکلاتو ته په پاملرنه زما یو مهربان به تل له ما سره پــه دی باب تاوده بحثونه کول ،لاربښوونی به یی راته کولی اودنقد دغوستونزوته به یی تل متوجه کولم .

د ۱۳۵۵ هـ ش کال دعقرب میاشت کی ددزیری جریدی دمسوول مدیر په توگه وټاکل شوم ،یوه گڼه می لاچاپ کړی وه او که نه چی یــوه شپه دواړه (زما مشر او زه) پــه گذرگاه کی خپل یوه گران ادیب او شاعر ورور په کور کی میلمانه وو،زما مهربان راته ناڅاپه وویل :دنقد دجاری کولو اود نقد دمشکلاتو په باب چی به می له تا سره خبری کولی، داده ددی کار لپاره خو مجراپیدا شوه ،ماویل کومه مجرا ؟ وی ویل :ولی زیری !اوس به نو که خیر وی تر ټولو دمخه په زیری کی اقتراح پیل کړو او له پوهانو څخه به وغواړو چی دنقد ددودولو لپاره لاری چاری ولټوی، خپل نظریات موږته راکړی ،بیا که لازمه ولیدل شوه نو به دعملی نقد په خصوص کیهم څه کار وکړو !داقتراح مضمون همالته دگران (م. ع.غ) په کور کیپــه مشوره جوړ کړای شو ، او د اخبار په را تلونکی گڼه کی مونشرکړ .دهیواد لیکوالو پوهانو او درنو استادانو دغــی غوښتنی ته مثبت ځواب ورکړ ،هر چا خپل نظریا ت راولیږل چی داخبار په بیــلا بیلوگڼو کی نشر شول .

زمادیر مهربان اوپرما لوی حقدارلوی استاد علامه پوهاند عبدالحــی حبیبی (الله (ج) دی جنتونه ورکا)تر ټولو دمخه خپله مقاله راولیږله چی داقتراح دمضامینو پیل دهمدوی په مقاله وشو .او بیا دنورو پوهانو او لیکوالو مقالی پر له پسی نشرشوی ،دی لړی ۱۳۵٦ هش کال تر څو گڼوهم دوام وموند .پرنقد باندیدنظـــر یاتو له خپرولو وروســـته

زما دبل فاضل استاد اوحقدار پوهاندعبدالشکور رشاد په ابتکار په‌زیری کی عملی نقد شروع شو ،په‌عملی‌نقد کی :استاد رشاد، استاد رښتین، بریښ او ما برخه ودرلوده ،خوداچی‌دی برخی له نیت سره سم دوام و نه‌موند نوځکه ژربنده شوه ،شخصی‌اغراض پکی‌داخل شول‌دنقد معیارونه تر پښو لاندی شول او خبره دعووته‌سره ووته ،مگر ما دزیری دمدیرپه توگه دهر چا نظر او هر ډول خبری‌که ماته هم راجع وی پرته له‌کومه تغییره او تحریفه نشر کړی .

دغه ډول دشپږ پنځوسم کال په‌دوران کی دپوهانو ترمنځ داخبره‌هم توده وه‌چی په پښتو کی داصطلاحاتووضع دهر چا کار نه دی او یـــو شخص دخپلی رایی مطابق نه شی‌کولای چی داکار تر سره کړی دا د اکاډمیواود باصلاحیته پوهانو دیوی‌ډلی کار دی ،دغه ضرورت ته په پاملرنه زیری بیا د۱۳۵٦ هش کال‌په پای کی دنوو اصطلاحاتو دوضع په باب دیوی اقتراح په ترڅ کی دخلکو نظریات وغوښتل ،دی اقتراح په اووه پنځوسم کال کی هم دوام‌درلود .چی په دی‌کی دزیری دچلونی چاری بل چا ته ورسپارلی شوی اوداافتراح هماغسی نیمگړی پاتی‌شوه.

ددواړو اقتراحگانو مضامیـــن تـــرکومه ځایه چی مقدوره وه نشرشول، اود اخبارونو پاڼو خوندی کړل ،خوکلونه پری تیرشول ،خوزموږ ځوانانو یی لاخوند نه وهیر کړی .

د ۱۳٦۳ هش کال په عقرب کی‌دلیکوالو اتحادیی دنقد سیمنیار جوړ کړ ،په دی سیمینار کی ځوان نقاداو لیکوال گران بهاند په پښتو کی دنقدپه تاریخی لړی‌مقاله ولوستله،چی ددوی په مقاله کی دزیری دنقد اقتراح ته ډیر ارزښت ورکړل شوی‌و ،زه‌هم داتحادیی له غړونه . دباندی خلکو په لړ کی سیمینار ته بلـل‌شوی وم ،مقاله می واورېده دمقالی محتویاتو خوند راکړ او زما دمسوول‌مدیریت دوخت دزیری‌دنقد پراقتراح تبصری لازیات خوند ،او ورسره داهیله هم راپیدا شوه چی زما کړی

کار څه ارزښتمن خودی ،داهسی یوه‌ورځ وه تیره شوه ،زما خاطر ته هم نه راتله چی گوندی زموږ ځوانانډی مقالوته متوجه دی .بله ورځ گران بهاند راغی وی ویل زه خو دزیری ددی اقتراح مضامین په تکور ټولوم چی دیوی مجموعی په ډولچاپ‌شی .

ما ورته غبرگه کړه :که چاپ‌یی تاسی لازم بولی نو زما عاجزانه مشوری دادی :

۱ـ دنقد داقتراح په برخه کی‌دنظری نقد مقالی واخلی اود عملی نقد نه ،ځکه دعملی نقد په ځینومقالو کی دنقد اصول تر پښو لاندی شوی دی نو لازمه نه ده چی دغسی‌مقالی دی هم دنقد په یوه مجموعه کی راشی ،زموږ ستاسو هدف دادی‌چی ددی نظریی دسالم ترویج لپاره کار وکړو،نه داچی‌سپیری ښکنځاوی‌چاپ کړو .

۲ـ زیری دیوی بلی مهمی موضوع‌په باب هم یوه اقتراح وړاندی کړی ده ،چی نیمگړی نشر شوه ،دادنوواصطلاحاتو دوضعی اقتراح ده ،ددی اقتراح مضامین دی هم دمجموعی په پای کی واچول شی .

پوهنیار بهاند زما خبری وارویدی‌او هماغسی یی وکړل او گران تکور هم دبهاند له یادونو او زما فقیـرله عاجزانه مشورو سره سم دزیری ددی دوو اقترا حگانو مضامین سره‌را ټول کړل ،چی دادی دپښتو ژبی ددوو شاعرانو غنی او اجمل دزوکړی‌دکالیزو دنمانځنی په مناسبت په یوه مجموعه کی خپاره شول .گران‌تکور له ما نه وغوښتل چی دزیری دهمدغه وخت دمسوول مدیر پــه توگه څه پروکاږم او هم مجموعی‌ته یو نوم خوښ کړم .ما دتکور په امرددغو دوو اقترا حگانو دطرحی جریان تاسوته وکیښ اودنامه په خصوص‌کی می گران تکور ته عرض وکړ ، چی ددی مجموعی نقد داقتراح پیل‌دلوی استاد علامه حبیبی پر مقاله شوی دی ،اود مرحوم لوی اسـتادپوهاند علامه حبیبی دمقالی عنوان

«کره کتنه» و ،نو زه تبـرکاً ددیمجموعی لپاره د «کره کتنه» نـوم غوره بولم .زه گران تکور ته زیات بریالیتوبونه غواړم او خوشحاله یم چیزمادوخت دزیری مضامین دمجموعوپه ډول بیا چاپیږی او زموږ فرهنگی حلقی ورته په ارزښت قایلی دی .

په درناوی

احقرالعباد ز ،ه

# فهرست

# سریزه

دپښتو په معاصرو ادبیاتو کــــی دادبی نقد په باره کی ډیر عمده او اساسی مواد نه لرو چی له هغـــی څخه دی بشپړه استفاده وشی نــه پوهیږو چی ولی دادب دغی ضروری او په زړه پوری برخی کی ډیر کار نه دی شوی او لا تر اوسه پــــه نشت حساب دی تراوسه پوری داسی ډیر خلك شته چی دادبی نقد نه یی ویره کیږی او نه غواړی چی خپل ادبی او هنری اثار ادبی تنقید ته وړاندی کړی ددی نه دا جوتیږی چی نقد لاتر اوسه په خپله اصلی بڼه نه دی ښکاره شوی .

که چیر ته ادبی نقد دیوه اثرکره کولو او تللو په معنی قبول کړو او باید چی قبول یی هم کړو نو پورتنی ویره چی زموږ د ډیرو لیکوالو سره‌شته ځومره به بی ځایه وی او په دغه لار کی زیار نه ایستل او ارام کښیناستل به بیا یو بـــل سست او دردیدونکی گام وی . او

دا څکه کوم وخت چې دادب ریښې په یوه ټولنه کې غزونې کوي ددې سره سم دنقد ریښه هم نمو او وده کوي .چې دغه دتنقید دریښې وده او انکشاف بیا دادبیاتو په وده او پراختیا کې ډیر عمده رول لوبوي.

یعنې کله چې یو اثر کره نه شي‌او هغه ونه تلل شي اویا دهغــــې ښې ګنې او بد ګنې ورپه ګوته نه شي‌اوپه راتلونکې کې ددغو نیمګړتیاوو مخه ونه نیول شي نو په ادبیاتوکې اوښتون کله راځې او کله بیا وده کوي .زموږ په هیواد کې همدااوس هم ادبي تنقید دادب دنورو صنفونو پر تله ډیر کم ښکار ي‌داسې وخت وو چې ادبي نقد زموږ په ټولنه کې دانتقاد په مفهوم اوادبي انتقاد بیا دستغو سپورو خبرو په مقصد استعمالیده نو همدا وجه‌وه چې ادبي نقد په خپله اصلي بڼه نه شو کیدی او په داسې‌حالت‌کې چې نقد ستغو سپورو خبرو ته وویل شي نو دادبي تنقید نوم بیاڅوك کله اخستی شي او څوك بیا کله یو اثر چې له نیمګړتیاو نه ډك وټې تلې .

زموږ په هیواد کې هغه وخت‌چې دیوه اثر کره کول‌او تلل‌سپکاوی ګڼل کیده او ډیرو څو دتنقید کلمه په خپل اصلي معنی هم‌و پیژندله نه .په هغه وخت کې چې ادبي‌نقدته ډیر ضرورت احساسیده .

نو ګران زلمی هیوادمل دزیر ي‌دجریدې مسئول چلو ونکی شــو . دزیری په جریده کې دده په راتګ‌سره ډیر زیات بدلون راغی دزیر ي خپرونې‌دده په زیار او ډیر ادبي‌کړاو سره په ډیره او په ځای ادبي بڼه غوره کړله .کولی شو چې موږ‌دغه سرحله دزیری دجریدې پــــه خپرونو کې داوښتون مرحله وګڼو.او په هیواد کې دادبیاتو دودې یو لوی او اساسي ګام .

ګران زلمی هیواد مل په زیر ي‌کې په داسې ادبي فعالیتونو پیــــل وکړ چې زموږ ادب به دتل دپاره‌پرې ویاړي .هغه ددغو ټولو کارونو سره سره زموږ په هیواد کې دادبي‌تنقید حالت ښه لیده نو له دې‌امله یې یو لوی ادبي او نه هیریدونکی کار ته لاس واچوه او هغه دیو ی اقتراح خپریدل وو .هغه دیــو ی‌اقتراح پــه وسیله چــې ددیارلس سوه پنځه پنځوسم ه ش کال دزیری‌دجریدې د شپږ دیر شمــې ګڼې په څلورم مخ کې خپره شوه . دهیوادپوهان او لیکوالان ادبي نقد تــه متوجه کړل او ددغه کار ښه توب‌یې واضیح او څرګند کړلو .

محترم زلمی هیوادمل په دغــه اقتراح کې په ډاګه وښودله چې

زموږ په هیواد او فرهنگ کی ادبی تنقید ته څومره ضرورت دی ادبی نقد دادبیاتو دودی دپاره څومره گټور دی او نقد باید څنگه خپله اصلی بڼه غوره کړی .نو دهیواد پوهان او لیکوالان یی دغه کار ته راوبلل چی د ادبی نقد او کره کتنی په باب خپلی مقالی ولیکی او په زیری کی یی خپری کړی .

زموږ دهیواد پوهانو او لیکوالو دمحترم هیوادمل دغوښتنی سره سم داثارو په کره کولو . اود کره کتنی دتیوری په باب ښی او په زړه پوری ارزښتناکی علمی او ادبی مقالـــــی ولیکلی چی دخپریدلو سلسله یی د دیارلس سوه پنځه پنځوسم هجری شمسی کال دزیری دجریدی په اته دیرشمه گڼـه کی دلـوی اسـتاداروانښاد علامه پوهاند عبدالحـی حبیبی په عالمانه مقالی پیل شـوه چی ددی نه وروسته بیا دتولــو پوهو لیکوالو مقالی په پر له پسی ډول خپری شولی په زیری کی دادبی نقد او کره کتنی په باب دمقالـو میدان ښه گرم و چی فاضل محقق زلمی هیواد مل په هیواد کی دپښتو دنوو اصطلاحاتو وضع اود نوو پښتو اصطلاحاتو رواج او ضرورت ته فکرشو دا ځل یی دیوی بلی اقتراح په واسطه پوهان اولیکوالان بیازیری ته راوبلل دغه دوهمه اقتراح ددیارلس شپږ پنځوسم هجری شمسی کال دزیری دجریدی ددری څلویښتمی گڼی په څلورم مخ کی خپره شوه هغه په دغه اقتراح کی دپښتو دنوو اصطلاحاتو په عامولو اود هغو په ضرور ت لیکوالان وپوهول چی لیکوالــو او پوهانو دنـوو اصطلاحاتو پـه هکله ډیری گټـوری او هــر اړخیـز ی مقالی ولیکلی چی پیل یی دمحتـرم سر محقق محمد صدیق روهی پـه عالمانه مقالی ووشو .او بیاپه منظمه توگه او په پرله پسی ډول خپری شوی .دغه کار تر هغه وخته پوری دوام وکړ تر څو چی گران هیوادمل دزیری دجریدی مسئول چلوونکی وکله چی هغه دزیری دجریدی نـه لری کیږی نو له بده مرغه ددغـه ارزښتناك او علمی کار لړی هـم شلیږی اوادبی تنقید اودنوو اصطلاحاتو وضع بیر ته خپل پخوانی حالت اختیاروی .چی تر اوسه پوری دغه شان تیت او پرك ډول دکره کتنی او ژبپوهنی په باب ځنی مقالی لیدلی شو .چی زموږ دزیات ضرورت له امله کولی شو دغه هم په نشت حساب کړو .او همدا اوس ادبـی

نقد ته اساسی کار لازم دی .علمی او ادبی اثار باید وتلل شی عملی نقد لمن باید دبل هر وخت نه پراخه شی داثارو ښه توب او بد توب باید معلوم شی اوددی په څنگ کی باید دکره کتنی دتیوری په باب هم اساسی گامونه پورته شی.

نو کله چی ځوان منتقد لطیف بهاند ماته ددغو مقالو درا ټولو په باب څه وویل نو په هماغه ورځ می گران هیوادمل ته داخبره یاده کړله او هغه هم نیکه مشوره را-کړله او ددی کار ښی گنی یی راته څرگندی کړلی نو ما هم ددوی په لارښونه ددغو مقالو په راټولولو پیل وکړ چی دادی اوس می چاپ ته دیوی رسالی په توگه تیاری کړلی.

ما ددی رسالی په باب دیو ی اوږدی مقدمی نه گریز کړی دی او دا ځکه چی یو خو دکره کتنی دتیوری په باب بشپړه استفاده وی موادنه لرم او بل زما غوندی دلږی مودی لیکوال ته یوه اوږده مقاله له کړاو نه هم ډکه وه او څه چی دی هغه به تاسی په خپله په همدی رساله کی ولولی زه فقط دومره ویل غواړم چی په دغو مقالو کی نقد په خپله اصلی بڼه لیدلی شو دنقد دتیوری په باب هم په زړه پوری مواد لری. او ډیری گټوری او له ارزښت نه ډکی دی. دا ډول دعملی نقد اصول او قواعد هم په دغومقالو کی شته دی چی لوستونکی کولی شی چی دیو ښه مأخذ په توگه استفاده تری وکړی .بله کومه خبره چی‌ده هغه دپښتو ژبی دنوو اصطلا حاتو په باب زموږ دهیواد دپوهو او مجربو لیکوالو او عالمانو مقالی‌دی چی په لنډ ډول کولی شو چی ټولی دغه مقالی په دری برخوویشو .

لومړی .هغه مقالی دی چی دکره کتنی دتیوری په باب لیکل شوی دی .او ډیر جالب استفادوی موادلری .او لوستونکی کولی شی چی دیو ښه مأخذ په توگه ور څخه استفاده وکړی .په دغو مقالو کی دنقد دپیدایښت او ادبی تنقید په گټور توب هم ډیری ضروری خبری شته که څه هم دکره کتنی دتیوری په باب خبری په دی څو مقالو کی نه ځاییږی خو بیا هم یو څه نا څه دلوستونکی تنده پری ماتیږی .

دوهم

دوهم : هغه مقالی دی دعملـــی نقد په باره کی لیکل شوی دی او لوستونکی په ډاگه په کی وینیچی یو اثر باید څنگه وتلل شی او څنگه دهغه ښه توب او بد توب سره بیل شی .

دریم : هغه مقالی دی چی دپښتو دنوو اصطلا حاتــو دضرورت او د هغو درواجولو په هکله لیکلی شوی دی چی دژبپوهنی پــه باب گټور مطالب لری او لوستونکی کولی شی چی پوره استفاده تری وکړی .

**بس همدومره**

**په ډیره مینه**

**افضل ټکور**

# اقتراح

څرنګه چې ادبي نقد د ملتونو د ادب په وده کې ستره برخه لري. څرنګه چې زموږ په خپرونو کې د ادبي نقد برخه کمه ده.

څرنګه چې په پښتو کې ادبي نقد په واقعي توګه منځ ته نه دی راغلی او څرنګه چې زموږ په ادب کې ادبي نقد ته زیاته اړه لیدله کیږي نو!

ځکه زیري غواړي چې د ادبي نقد د ودولو، د ادبي نقد د لارو چارو د ټاکلو او د ادبي نقد په واقعي توګه د رامنځ ته کولو له پاره په دې برخه کې یو اقتراح پیل کړي.

موږ له محترمو پوهانو او په دې برخه کې د صلاحیت له خاوندانو څخه هیله لرو چې د ادبي نقد په باب به خپلې نظر یې راواستوي او زیري به یې پر له پسې خپرې کړي.

علامه پوهاند عبدالحی حبیبی

# کره کتنه

ښاغلی زلمی هیوادمل !

زیری دوی دری وروستنی گنهـــی‌می وکتلی ،دمضامینو تنوع ،دچاپ ښه والی او صحت او نوری ښـــیگنی یی دخوښی وړ دی .له پښتو تولنی څخه تشکر دی چی دی خواته یی توجه وکړه .اودا پانه یی یوه کتوره او ذوقی او دلوستلـــو اودستایلو وړ کړه .

دلیکوالو او ښاغلو پوهانو مرسته او توجه دی خواته را اړول هم یو کتور کار دی .ستا توفیق په دی‌لار کی غواړم .او ټولو ښاغلولیکوالو چی ستا سره یی مرسته کړی اوداجریده یی په خپلو مضامینو ښایسته کړی ده . کور ودانی وایم امید کوم‌چی دغه معیار به وساتی او دپښتو په خدمت کی به لازیات بریالی یی

تاسی ښاغلی لیکوالان ادبی کره‌کتنی نقد ، ته هم رابللی دی اودا

ډیر ښه کار دی .ژبی ته ډیره گټه لری او که په شخصی اهـوا او اغواضو ککړ نه سی نو به ښی‌خبری‌او خیړنی وسی .پخوا هم دپښتـو ټولنی دکابل مجلی دکره کتنی یوه‌خاصه برخه لرله .

په ۳٦ گڼه کی زما دوی خبری‌را په یاد سوی دلته یی ستا او نورو‌ملگرو دتوجه دپاره‌کاږم .ښایی‌چی‌ملگرو او ښاغلو لیکوالو ته پاره‌یوه گټه وره یادونه وی :

۱ـ په دریم مخ کی یو، ښکلی‌پتمی ټولنپوهنه ،ساپوهنه ـوگړـ پوهنه لیدله کیږی چی دسوسیالوجی‌او سایکالوجی او انترو پولوجی له پاره نوی جوړ سوی اصطـلاحا ت‌ښکاری .

نه پوهیږم چی‌دغه نوی اصطلاحات‌چا جوړ کړی او چا منلی دی ؟ پخوا خو به پښتو ټولنی دغسی کارونه دپوهانو او لیکوالو په سلا په یوه علمی غونډه کی کول . اوس نـــه پوهیږم چی څوك یی کوی ؟

ما ته ټولنپوهنه او وګړ پوهنه بده نه ښکاری .ښایی چی دډیمو ـ گرافی له پاره هم دوگړی له ویی‌څخه کار واخلو ،خو دسا پوهنی‌سره سخت مخالف یم کـه یـی مطلـب‌روانشناسی او روحیات وی . سـا په پښتو کلیمه سا ،یا ساه ده اودروح او روان له پاره موږ «اروا» لرو چی ریښه یی له روان سـره مشترکه ده او په کوشانی ژبه‌کی هم ال و ـارو ،دجان په معنی وه‌چی دسره کوتل په کتابه کی سته اود اوستا او رونت =او روان ددری او پهلوی له روان او پښتو اروا سره برابر دی نو باید دسا پوهنی‌پر ځای اروا پوهنه ووایو .

سا په پښتو کلیماتو کی دنفس‌په معناده لکه سا وهل :
«نفس زدن» سا لنډی (نفس ښدی‌ضیق النفس) سابندی (نفس بنـد شدن) سا کښل (نفس کشیدن) په‌سا وهل چیز خوردنی را به مجرای تنفس فروبردن په سره سا (پـــه ارامی) سره سا ایستل (نفس سرد کشیدن سا ورکول «تنفس بند شدن‌ومجاز مردن» په دی ټولو کی سـا دنفس معنا لری اود روح سره هیڅ‌اړه نه لری ،روح او جان یا روان په پښتو (اروا) دی چی باید پـه لیکنو کی هره کلیمه پر خپل ځای او په خپله معنا وویله سی .

۲ـ دخیړنوال دوست لیکنی ډیرځله تحقیقی اود گټی وړوی خدای دی دده پر ځوانی برکت کی . په‌رشتیا خیړنوال دی .ده په دریم مخ

کی‌دپښتو نالت کلیمه په‌دوو معناوو له عربی لغت څخه راوتلی ګڼلی ده خو زه یی دسر کوزی (خوك) پــه مفهوم سوچه پښتو بولم نه له عربی څخه را وتلی .

په پښتو کی دغه بد ځناور په توصیفی ترکیبونو لکه سر کوزی ، خر بشوی مشهور دی زما په خیال‌چی اصلی موضوع نوم به یی نالت وی‌چی پنځوس کاله پخواما دقندهارپه ارغنداو کی په دغه معنا اوریدلی ومګر عام لغت نه دی .

موږ ډیری داسی کلیمی لرو چی‌په ظاهره له عربی یا دری څخــه راوتلی ښکاری خو که څوك پســی‌وګرزی ،خپلی اریایی ریښی لری. چی له هغو سره ښه نښلی لکه دپښتو اپت چی ظاهراً له عربی افت څخه راوتلی ښکاری خو ریښه یی‌دسنسکریت له اپته سره مشتر که ده او معنا یی یوه ده .

په ظاهره دپښتو سدری بایــدعربی صدر څخه جوړه سوی وی خو ریښه یی د اوستا سدره ده‌چی‌کټ مټ دغسی لکه دپښتــو یــو د اغوستنی کالی دی چی دعبادت پروخت یی مو بد اغوندی .

اروا (روح) هم ځنی خلك لـه‌عربی جمع (ارواح) څخه را وتلــی بولی مګر په خپله په اریایی ژبوکی‌پخی ریښی لری ،ولی به یی لــه ساحی (ارواح) سر نښلوو ؟

نالت :که په فعلی او ترکیبــی‌مفهوم دکول له‌مشتقاتو سره‌استعمال سی ښایی چی له عربی لغت څخه به‌وی مګرپه اسمی ډول چی‌سرکوزی ته وویل سی ،سوچه پښتو به وی.

په هر ډول داسی لیکنی دپښتولوی قاموس دپاره مواد را ټولوی، او باید چی څیړونکی یی ولیکی اوچاپ سی چی بیا پر خپل وخت له سندونو سره په لوی قاموس کــی‌ځای ومومی .

زه د زلمو دغسی لیکنو ته دقدرپه سترګو ګورم .

یوه دغور وړ خبره .

کله کله دمطبوعاتو یا درادیــودخپرونو له خوا په پښتو کی ډیر ښه کلمات یا نوی جوړ سوی اصطلاــحات اوریدل او لیدل کیږی . مثلاً وزلو به دبزکشی پر ځای زما ډیره‌خوښه سوه .یا دبیلا بیل کلیمه خو را خوږه ده اود ګونا ګون اومتنوع‌او جداګانه پر ځای دریدای سی .

مګر کله کله داسی کلمات هم اروېدل کیږی چی تش محلی ارزښت لری .او پرځای یی نور عمومی کلمات سته چی ګرده پښتانه یی وایی او په پوهیږی او داسی کلیمات یا تعبیرونه او اصطلاحات تر محلی موادو غوره دی باید چی په ادبی ژبه کی ځای ونیسی .

دمثال په توګه وایم : شا او ترشا دپښتو عامه وینا ده چی هر څوك ښه په پوهیږی لکه :تر شا سو ،پرشا ولاړ ددی محاوری پر ځای یوه محلی اصطلاح په څټ شو هم سته .مګر څټ خو یوه خاصه معنا هم لری او په څټ کیدل ټول پښتانه نه پیژنی او څټ دشا پر ځای نه سی دریدای .

بله خبره داده چی ځنی کلیمی یا تعبیرونه او اصطلاحات داسی دی چی په یوه خواکی ویل کیږی او یو خاص مفهوم ادا کوی خو په بله اواکی خواکی هغه مفهوم نه لری بلکه بدی خبری هم ګڼلی کیږی نودغسی مواد په مطبوعاتو او رادیو کی خپرول ښه کار نه دی او ادبی ذوق یی نه منی او پر اروېدونکو بده اغیزه هم کوی .

مثلاً ژبه کول د وعدی په مفهوم دغربی خوا په محاوره کی داحتجاج او ژبان بازی او بی شرمی معنا وی لری .یا په ګوته کول هم خورا بده معنا لری .یا تماس نیول یا تصمیم نیول چی کورټ پښتو نه دی او نه زموږ خلك په پوهیږی ژبه کول به څوك دوعدی کولو پر ځای وایی خو بل ځای بده معنا لری .

نو به داښه وی چی پرځای یی په خپله دپښتو کلمه ژمنه کول ولیکو داکلمه په پښتو ادب کی دوعدی په معنا ویله کیده لکه په یوازی دول دخوشحال دا وینا.

بله لمبه دی، دوصل ژمنه ده
بلـه می عیـن دزړه دننـه ده

یا ژمنه کول مرکب اسم فعل:

خواږه عمر غوندی تلنه کوی ښه
په مدت ددیدن ژمنه کوی ښه

ښه کله چی په ژبه کی موضوعه اصیله کلمه ولرو څله په یو داسی مرکب تعبیر راوړو چی هغه به په بله خـوا پښتنو کـی بله او بـده منعا ولری ؟

په ګوته کـول هم دغسی ناوړه تعبیر دی چی په عامه پیښوکی تاکل یاتاکنه ورته وایی او هغه لومړی مرکب اسم فعل بده منعا لری د«پـه

گوته کړی یی‌دی» پرځای ویــلای‌سوچی تاکلی یی‌دی یانښأنی کړی یی‌دی یایی ښوولی دی‌یایی نخښه کـړی‌دی او نور لکه نغوتلی . . . .

هغه کلمات اوتعابیر چی‌دپښتو په یوه بله خواکی رکیك گڼل کیږی اوبده معنا ځنی‌اخلی بایدپـه ادبی‌لیکنو اودعامو خلکو داروېـدنی او لیدنی په‌چارو کـی استعمال نسی.

دغسی هم‌ځنی ناروا اور کیـك نوی‌جوړ کړی تعبیرونه دی .چی‌دپردو ژبو تقلید پرپښتو راتپل‌شوی دی‌لکه تصمیم نیـول .تشریف راوړل رول لوبول چـی خورا ناوړه دی اوزموږ عام‌خلك کورت نه په پوهیږی.

یووخت زه‌وکیل التجاروم ،زمایوهموطن له بمبی ځخه راغی چـی په دری یی‌خبری کولی ماورته وویل :کی تشریف اوردید ؟

دالمری په تشریف اوردید نـه پوهیدی وی‌ویل :

صاحب از بمبی زرد چوبه آوردم.

دپیښور پښتانه چی رول لوبوی‌یا تصمیم نیسی واروی نوږیر خاندی چی‌دا بیا ځنگه پښتوده او ځه معنالری ؟

تماش نیول‌خو بیخی بدتعبیر دی‌مخصوصاً که‌له مونث سره‌وی .

داتول نوی‌او ناوړه تعبیر ونـه زموږ په‌ژبه کی بدعنونه دی چی دتقلید لـه لاری پر پښتو بانـدی رااوښتی دی‌خو که‌موږ لږځه فکـر وکړو په‌خپلو محاورو اولهجو کی‌یی‌اصیـل او خورا خـواږه ســیالان موندلای‌سو .

کابل جمال‌مینه
۵/۹/۵۵

سر محقق معتمد

# ادبی انتقاد

یوه ژبه او دیوی ژبی ادب هغه وخت خپل مقام ته رسیږی چی ادبی انتقاد په کی موجـود وی دادب دترقی دا یوه ښه او تجربه شوی لاره ده .زیری چی دا اقتراح پیل کړی ده . یو هوښیار او په ځـــای کار یی کړی دی .

که یو ادیب او لیکوال وپوهیږی‌چی دده لیکنه تعقیبیږی او ضعیفو نقطو ته یی گوته نیول کیږی اودمطبو عاتو په پاڼو کی فاش کیږی هغه بیا زیات کوښښ کوی او په خپله لیکنه کی حتی المقد ورنیمگړ- تیاوی نه پریږدی او یو منلی اومسلم اثر منځ ته راباسی چی داپه حقیقت کی ادب او ژبی ته یو رنگ‌خدمت دی او که لیکوال مطمئین وی چی ادبی انتقاد نه شته او هر څه چی ثوك لیکی هغه تیریږی بیا په دی صورت کی دومره کوښښ نـه کوی او چی په یوه اثر کی په کومه اندازه زیار او کوښښ لړ وی په هماغه اندازه خپل ارزښت دلاسه ور

کوی او دادب سویه په عمومی‌توگه رابنکته کیږی .چی داپه حقیقت کی ادب او ادبی چارو سره جفا ده اوپه اوسنی اصطلاح دارنگ لیکوال ته چتك نویس وایی او ډیر څه لیکی مگر هیڅ وخت ټولنه اوجامعه ورته دلیکوال په سترگه نه‌گوری‌او نه یی دیو ادیب په حیث پیژنی.

کیدای شی چی یو شخص یو اثر ولیکی اود همدغه یو اثر په برکت دادب لقب وگټی (لږ دی وی خوبنه دی وی خارجی متل)

انسان چی پیدا شوی دی په هماغوابتدایی ټولنو کی ادب ورسره سم پیدا شوی دی او ادب په څنگ کی‌ورسره ادبی انتقاد هم منځ‌ته راغلی هو !په کومه ټولنه کی چی ادبی‌انتقاد څومره قوی شوی دی دهغی ټولنی ادب هم په هماغه اندازه‌قوی‌شوی او مشهور شوی دی .

مثلاً په عربی ټولنه کی دادبی‌انتقاد روحیه ډیره قوی وه او په هراثر باندی بنکاره انتقادونه کیدل‌او همدا وجه ده چی عربی ادب ډیر وړاندی تللی دی اود اسلام دپیغمبر(ص) نه سل کاله پخوا دغه ادب او دغه ژبه خپل ځای ته رسیدلی‌وه (۱) دمکی به خوا دعکاظ بازار دشعر اوشاعری دپاره‌تخصیص شوی‌و او هر کال به په یو ټاکلی موسم کی په دغه بازار کی شعری مسابقی‌کیدلی -ادبی مناظری او مباحثی به کیدلی او ادبی اثار به انتخابیدل،کوم شعر او یا قصیدی به چی جایزه وگټله او کره به شوه نو هغه به یی بیا راووړه اود کعبی په دیوال به یی ځړوله .اوتر کاله پوری به هملته وه او دا ددی دپاره چی عام خلك یی وگوری اود قضاوت لاندی‌یی ونیسی کعبی ته دجهالت په‌دوره کی هم خلك راتلل او احترام به‌یی‌په ځای کاوه ،نو ځکه دعامی کتنی دپاره دغه ځای انتخاب شوی ؤ .دهمدغو مشاعرو برکت و چی یو کتاب (سبعة المعلقة) منځ ته‌راغی‌او اوس دیو ادبی شهکار به حیث دنړی په زیاترو مدارسو کی دافغانستان دمدرسو په شمول تدریس کیږی دسبعة المعلعة معنی (داووه‌ځړول شوی قصیدی) ددغو قعیدوپه منځ کی دیوی قصیدی په یو بیت‌باندی یو شاعر انتقاد وکړ مگر پخوا له دی چی دقصیدی څښتن ځواب‌ورکړ ی دریمگړ ی ځواب ورکړ او انتقاد والایی پوه کړ چی انتقاد بی‌ځایه دی او بیت کی نقصان نه شته او دبلاغت نه ډك دی هغه بیت دادی

اذا غیرا لهجرا لمجین لم‌یکلـــد
رسیس الهوامن حب‌مية يبرح

ددی بیت معنی داده :چه بیلتون موږسره جلا کړی بیاهم دمیة (دشاعر محبوبه ده) څخه به زما سینه زایل او لرې نه شی .دانتقاد ټکی د (لم) په هر ځای کی دنفی معنی ورکوی مګر که په (یکلد) داخل شی بیا دنفی معنی نه ورکوی خو دریمګړی ځواب ورکړ چی (لم) په هر ځای کی دنفی معنی ورکوی حتی پـــه (یکلد) کی هم او دده نظریه نورو شاعرانو او ادبیانو هم تائید کــړه او بیت په خپل اصل پاتی شو .

ددومره اوږدی لیکنی نه زما مطلب دادی چی څرنګه په عربی ټولنه کی دانتقاد روحیه او عنعنه موجوده وه نو ځکه عربی ادب ډیر وراندی لاړ او ډیر قدر او اهمیت یی پیدا کړ،حتی عربی ادب دومره منزلت پیدا کړی و چی دعربو سردارانو (اعشی) مسلمان شاعر ته وویل :

که ته دهغی قصیدی نه تیر شی چی تا د محمد (ص) په مدحه کــی لیکلی ده موږ به تاته سل اوښان درکرو یعنی په عربو کی دیو ی قصیدی قیمت سلو او ښـــانو ته رسیدلی و ،او که اعشی موافقه کړی وای نو دوی دغه قصیده په سلــواوښانو رانیوله او دا ستر قیمت دی (۲) .وایی چی په عربی ژبه دټولی نړی دادبیاتو په اند ول ادبیات لیکل شوی دی .عربی ادبیاتو دومره اعتبار پیدا کړی او دومره نفوذ یی کړی وچی دربار ته ورننو تلی اودسیاست جز ګرځیدلی وو او خصوصاً بیا د امویانو په وخت کی تبلیغ ستــره وسیله همدا ادبیات وو .

که دعربی ادبیاتو څخه را تیـــرشو او پښتو ادبیاتو ته راشو نو په دغو ادبیاتو کی هم یوه دغوړیدلو او انکشاف دوره تیره شوی ده چی ادبیاتو په کی زیات قدر لاره او ادبی انتقاد په کی ډیر و او هغــه دروښانیانو او درویزه عصر ؤ .په دغه عصر کی چی دادبیاتو څخـــه دوسلی کار اخیست کیده اود مذهبی انتقاد نه پرته یوی ډلی په بلی ډلی ادبی انتقادونه هم کول ادبیات خپل اوج ته ورسیدل او په پښتو ادبیاتو کی دغه نسبتاً یو وتلی عصر دی . در ویـــزه بـــــه ویل چی بایزید یو څو پښتو ،فارسی عربی او پنجابی الفاظ را ټول کړی، کتاب یی ورنه جوړ کړی او په ترتیب یی نه دی پوهیدلی او کتاب یــی ورنه جوړ کړی دی چی (خیرالبیان) یی بولی .زما نظر دادی چی که شرالبیان ورته وویل شی ښه به وی .همدا رنګه دروښان ډلـی د درویزه دډلی لیکنی دانتقاد لاندی نیولی او هغه یی دمعنی او لفظ له حیثه ضعیفی او رکیکی بللی او همداانتقادونه وو چی هری ډلی کوښښ

کاوه اوادبی نیمګړتیاوو نه یی ځانساته .له بده مرغه که اوس یو ځوك په بل باندی انتقاد وکړی نوددی په ځای چی ورنه خوشحال شی او خپلی نیمګړتیاوی لری کړی ورنه خپه کیږی او پښه یی ټینګه کړی وی هماغه خپلی نمیګړ تیاوی سمی بولی او انتقاد هیڅ په ځان نه منی او دا ځکه چی زموږ ذهنونه دانتقادسره اشنا نه دی او په عنعنوی دول دغه شی موږ نه دی منلی .

که دا کار رواج شی او له یوی‌خوا انتقاد کوونکی سم انتقادونه بی له کوم غرضه وکړی او له بلـــی‌خوا دابل جانب هم په سړه سینه انتقاد ولولی دا به زموږ په ادب‌کی یوه نوی دوره پیل شی .او زموږ ادب به ډیر لوړ بوځی .او همـــدازموږ مطلب دی .

---

ماخذونه :ـ ۱ـ کوستاولوبو ن

۲ـ تمدن عرب واسلام دډاکتـــرکوستا ولوبون تالیف .

سر محقق روهي

# کره کتنه

ښاغلی دزیری مسؤل مدیر !

په دی ورځو کی چی تاسی تر پورتنی عنوان لاندی اقتراح طرح کړی ده دهغی په باره کی دوه ډوله تبصری اوریدل کیږی . ځینی وایی چی کره کتنه ډیره ګټوره ده ځیر ته چی کره کتنه او لاروښوونه نه وی لیکوال دخپل مضمون په سموالی او ناسموالی نشی پوهیدلی. سر بیره پردی ،یوه مشهوره مقوله وایی چی .

«دافکارو له تصادم څخه دحقیقت بریښنا منځ ته راځی» نو پریږدی چی کره کتنه خپره او عامه شی دکره کتنی بله ګټه داده چی لیکوال به (په تیره هغه لیکوال چی یوازی دحق الزحمی دپاره لیکنی کوی) د لیکنی په وخت کی له دقت څخه کار واخلی دمضمون شکل او محتوی ته به پاملرنه کوی او ترجمه شوی مضمونونه به به خپل نوم نه تیروی. ځنی نور وایی چی دکره کتنی موضوع پخوا له وخته طرح شوی ده .له بده مرغه زموږ اکثره لیکوال لاتر اوسه دی مرحلی ته نه دی

رسیدلی چی انتقاد دی وزغملی شی. یو زیات شمیر تجربو ښودلی ده چی دانتقاد نتیجه خپګان دی ځینی داسی کسان هم شته چی په لومړی سرکی هغوی دیوه لغت په معنا بحث کړی دی خو وروسته تری شخصی دښمنی منځ ته راغلی ده .

ددی وروستی خبری په باره کی باید وویل شی چی اول خو دکره کتنی مقصد دانه دی چی هرو مرودی منفی اړخ ولری په کره کتنه کی باید دمضنون ښیګنی اوبدګنی دواړه وڅیړل شی .دوهمه خبره داده چی که موږ د(خپګان) له ویری کره کتنه پریږدو نو په حقیقت کی به میدان هغه چاته خوشی شی چی دنورو دنفس له مناعت څخه ځانی استفاده کولی شی .ځنی کسان شته چی دخپل شهرت دپاره پر نامتو لیکوالو انتقاد کوی .لیکن دا ډیره مهمه اود اندیښنی وړ خبره نه ده . یو خو داچی نامتو لیکوال هم داشتباه څخه مصئون نه دی باید سم ته یی سم او ناسم ته یی ناسم ووایو. بله داچی یو شمیر خلک قضاوت کولی شی چیر ته چی قضاوت موجودوی له انتقاد څخه ویره نه ده په کار .

ښاغلی مدیر ! وبښی چی ما په ډیرو وړو شیانو خبری وکړی که څه هم ظاهر واړه ښکاری اما په خپله د (کره کتنی) په شان (ترخه) واقعیتونه دی .

په دی ځای کی به بی مناسبه نه وی چی تقریباً ددوو کلو مخکی یوه قصه درته وکړم قیصه داسی ده چی زه یوه نړیوال (سمپوزیم) ته روان وم په لاره کی را سره یو لیکوال ملګری شو دی ډیر خوږ ژبی ،ظریف او ملګری سړی وو که حافظ را سره مرسته وکړی دده نوم به (شکر قایموف) و .

ده دپیژند ګلوی په ترخ کی راته وویل چی (زما نوم خوږ او خبری می ترخی دی) ما ورته وویل چی «ستاخبری خو ډیری خوږی دی ته ولی دغسی فکر کوی ؟» ده وخندل اوویی ویل :

«زما نوم شکر دی .شکر (بوری) ته ویل کیږی خو زما کار انتقاد دی او انتقاد تریخ وی.» ده په توکوزیاته کړه !

»پلار می را ته ویل چی موږ له تانه توقع درلوده چی ته به شکر شی خو له تانه مرچ جوړ شول«

د پورتنی حکایت نتیجه داشوه چی «کره کتنه ترخه ده» خو دا هم

باید ووایو چې دغه «ترخه» له ډیروخوږو څخه هم خوندوره ده . ددې دپاره چې کره کتنه واقعاً خوندوره شي لیکوال باید لاندې ټکو تــــه پاملرنه وکړي :

لومړی داچې دلیکنې په وخت کې دې ددغسې جملو له لیکلو څخه ډډه وکړي چې دهغو اثبات بیخي مشکل وي .لیکوال باید پاملرنه وکړي چې دې دخپل مضمون دهرې جملې ،هرمفکورې او نظریې مسئوول دی . د هغو مطالبو اثبات چې له ارزښتونو(لکه ښه اوبد ،ښکلي اوبدرنګ...) سره اړه لري لیکوال لــه خاصــو مشکلاتو او ستونزو سره مخامــخ کوي .

دوهمه دا تر ټو پورې چې کولی شي دمقابل شخص پر مفکوره یــا عبارت د (غلط) حکم مه کوي لــــه یوې خوا ددې کلیمې استعمال مهذب نه ښکاري له بلې خوا په اکثروعلومو کې د (غلط) کلیمه تقریبــاً له مینځه تللې ده .کله چې څوک دساینس فلسفه وګوري په تعجب سره به ووینې چې دسم (صحیح)اوناسم (غلط) پیژندنه اسانه کار نه دی .سربیره پردې دا امکان شتــه چې دمقابل شخص مفکوره یا عبار ت دې غلط هم نه وي په دې صور ت کې به خدای دې نه کړي ،دلیکوال شارت ته صدمه ورسیږي یو شمیر لیکوال ددې پر ځای چې مقابل طرف ته ووایې چې «ستا خبره دتأمل وړده» البته پوهان پخپله پوهیږي‌چې دلیکوال مطلب هماغه «غلط» دی چې په ادبی الفاظو کې پیچل شوی دی.

دریمه دا چې د (مطلق حکم) پرځای د (غالب احتمال) اصطلاح مــه هیروی دا اصطلاح له تاسو سره د بحث او استدلال په وخت کې ډیره زیاته مرسته کولی شي په تیره‌هغه بحثونه چې داجتماعي پوهنوپه څانګو پورې اړه ولري باید دمطلقیت له ساحې څخه را اوایستل شي .

څلورمه داچې کره کتونکي بایــدپــه احساساتي مرحله کــې مضمون چاپ ته ونه لیږي بلکه دوه درې‌ځله دې خپل مضمون دورځې پــــه مختلفو وختونو کې وګوري .کیدای‌شي چې دنوی کتنې په وخت کې‌دې ځینې احساساتي جملې ترې وباسي.دا باید ووایو چې پر ته له ایډیاــ لوژیکي مضامینو څخه به نورو موادو کې غالباً لوستونکي خپل احساسات له لیکوال سره نه ګډه وي . نوکه دې هر څومره تیزې او تندې خبرې وکړي دلوستونکي په احسا ساتو لوبې نه شي کولی .

پنځمه داچې لیکوال دلیکنې په وخت کې دخپلې علمي مفکورې دملاتړ

دپاره باید ماخذونه ولري .که لیکوال له ماخذونه استفاده کوی بایددلیکلو نه مخکی کتاب په دقت وگوری هسی نه چی په نقل کی اشتباه وکړی مقابل شخص دلیکوال له دغسی‌اشتباه‌څخه دحربی په توگه ښه استفاده کولی شی .

شپږمه داچی دانتقاد په وخت کی‌دالفاظو رنگینی اود عباراتو خوږوالی له یاده مه باسی که ستاسو موقف‌کمزوری هـــم وی دانشأ روانی او ښکلا ستاسی لیکنی ته‌وزن ورکوی

اوومه دا که چیری لیکوال وپوهیږی‌چی نورنو خپلی خبری ته‌په اصطلاح «پرتوگ نه شی کولی» بهتره به‌وی چی پرنیمگړ تیاو اعتراف وکړی یو ښه اعتراف هم نیم جواب دی .

ښاغلی مدیر !

دکره کتنی په باب ډیری خبری‌شته که موضوع دوام وکړی اووخت لاس ته راغی نو دکره کتنی دماهیت‌او تکنیك په باب به یوه «علمی» مقاله هم درته ولیکم .

اوس دی په خدای سپارم

په درناوی .

معاون سرمحقق عبدالرحیم

# ادبی نقـد

انتقاد چی په انګریزی ژبه کـی ورته کریتسیزم Criticism وایی
دیونانی ژبی Kritine څخه اخستل شوی دی تنقید دیو شی کلام
یا متن ښی او بدی خوا معلومول .پوهول او کره کولو ته ویل کیږی.
په دی برسیره تنقید محاکمه کولو ته هم وایی ولی نقاد بیا په ادبی
اصطلاح کی هغه چاته ویل کیږی چی دانتقاد پواسطه ادبی تخلیق اوهمدا
رنګه دکلام په ښه والی او بد والی باندی یوه پریکړه صادره کړی ،تنقید
دژوندیو ضروری او حتمی جز ګڼل کیږی انتقاد څخه پرته زموږ ژوند
دسمون او رغاونی ښه ځان ته نه شی نیوی انتقاد په ژوند او چاپیریال
کی بدلون راولی موږ دژوند ټول ناوړه کارونه او نا خوالی دهمدی
انتقاد په ذریعه دسمون ،پرمختګ اوخوشحالی پر خوا بیا یو همدا انتقاد
دی چی موږ خپلو نیمګړتیاوو او نوربیا زموږ نیمګړتیاوی را څرګند وی
ولی په دی باید وپوهیږو چی دانتقادڅخه یوازی دامطلب نه دی چی تشی
نیمګړتیاوی ښیو بلکه اصله وظیفه داده چی ددغو نیمګړتیاوو دنسمیم ،
اصلاح او سمون لاری چاری هم په ګاړه لرو موږ وینو چی ډیر کسان
داسی فکر کوی چی انتقاد ګواکی دیو چا غندنه او کمزوری ښودنه ده.

ددی ډول فکر کولو یو علت دادی چی زموږ خلك ددی کار دزغم توان نه لری ،هر څوك ځان من کنی او په خود خواهی کی غرق دی بلکه خبره داده چی دوی انتقاد له بده مرغـه دسپکاوی او غندنی په معنی اخستی دی تر څو پوری چی انتقاد دکلیمی معنی او مفهوم په خپله اصلی بڼه عام نه شــی تر هغــو پوری زموږ حساسیت په دغه برخه کی په خپل حال پاتی وی .زموږ دهیواد په ادبی نړی کی ډیر کم خلك تنقید یوازی داصلاح او سمون په غرض کوی .دلته اکثره تنقیدونه دشخصی عقدو، بدبینیو او ځینو خاصو ملحوظاتو پر بناوی .خو که چیری کوم یو بیـا هم تنقید دعلم دتعمیم پراختیا او دغلطیو دسمون په غرض وکړی نود گیدړی قواله تری جوړه شی . زمامطلب دانه دی چی دلته هیڅ نقد کوونکی او منوونکی نه شته .دلته هم داسی کسان شته چی هم انتقاد کوی او هم یی منی اصله خبره داده چی داډول کسان هغه دچاخبره دګوتو په شمار دی .موږ باید په دی پوه شوچی انتقاد کونه دیوه فن کتنه تفسیر او تجزیه ده .نقد هغه تله ده چی دیوه شی درستوالی غلطوالی ،کره توب او کوټه توب معلوموی .خــوددی په څنګ کی دهغوی رغاونه هم دادبی نقد دنده ده .انتقاد دنوی خیال او نوی ایجاد مور ده .انتقاد ادب دتخلیقی ادب ترجمان دی .ایمرسن چی یو غوره پوه دی وایی .چی تنقید موږ ته یوازی هدایات او لارښوونه نه کوی بلکه روښانه کوی هم.

میتهوار نلډ دانتقاد په برخه کی بیا داسی څرګندونه کوی (په نړی کی چی دکومو ښو خبرو څرګندونی شوی او کــوم ښــه غوره خیالونه رامنځ ته شوی دی ،په هغو ټولو باندی پوهیدل ،معلومول او نورو ته رسول او همدا رنګه په نوی طرزتفکر سره رغاونه دتنقید اصلی دنده ده . )

دټاین په عقیده نقادته داغوره ده چی دمتن دلیکونکی دکورنی قومــی او نسلی حالاتو ،هغه چاپیریال په کوم کی چی هغه علم او تجربه تر لاسه کړی او لیکنه یی کــړی ده ټول تر څیړنی لاندی ونیسی . نقاد همدارنګه باید دلیکونکی اجتماعـــی،اقتصادی مذهبی حالاتو ته هم پوره پاملرنه وکړی .

دوالترپیتر په عقیده نقاد بایدغو دریو شیانو ته خپله زیاتــه پاملرنه وکړی . (دشاعر یا مصورښی کنی محسوسی کړی .دده دخوبیو تجزیه وکړی . او هغه بیا توضیح کړی ) .

دسکاټ جیمز په عقیده یو کره اوغوره منقد باید (یو داسی شخص وی چی په هره خبره پوه دهر شی کتنه او په هره لیکنه باندی نظر څرګند کړی شی .نقاد یوه معمولی خبر ی او اواز ته غوږ ږدی دغه اواز او خبره که دده دخوښی وی او یانه . رښتیا وی که دروغ تریخ وی او یا خوږ) .

پروفیسر ملټن په خپله لیکنــه کی دیوه غوره مشرح په توګه دنقاد دنده داسی ټاکی (نقاد باید دادبــی تخلیقاتو معقولیت وتلی او ارزښت یی څرګند کړی. )

ولی اصله او مهمه خبره داده چی موږ باید یوازی دنقاد په خبره باندی هم تکیه ونه کړو او هره لیکنه یی بی چون وچرا ونه منو که چیر ی داسی وکړو نو په دغه صورت کی به موږ دانقص کړی وی چی دلیکونکی اصلی لیکنی لوستل به راڅخه پاتی وی اود خپل ابتکار قضاوت نه به پاتی وو .ددی دپاره چی یوازی دنقاد لیکنی او فکر پیرو او غلامان نه شو بهتره داده چی په هره لیکنه کــی خپل شخصی قضاوت هم ګډ کړو .
منقد ته ښایی چی دی په دی پوه شی چی کوم شیان پاتی کیدونکی او کوم ختمیدونکی دی ددی په څنګ کی دی باید دی خبری ته پوره پاملرنه وکړی .چی هنرمند دکومو اخلاقی اوهنری اصولو څخه خبر اود کوموڅخه په بی خبری کی تیر شوی دی .
دسکاټ په عقیده یو غوره منقد باید ښه لوستونکی ، پوهیدونکی ، تشریح کوونکی او با انصافه وی .دپورتنیو صفاتو درلودو نکی یوښه منقد کیدای شی .ځنی خلك په دی عقیده دی چی نقاد باید یوازی دیوی ادبی لیکنی ښیګڼی راوسپړی داخبره درســته نه ده نقاد باید په دواړو خواوو باندی ښه والی او نیمګړتیا باندی پوره رڼا واچوی .

شیلر چی یــو غوره لیکوال دی وایی چی که موږ وغواړو دیوه لیکوال د لیکنی په برخه کی بی طرفانه قضاوت وکړو نو بهتره خبره داده چی نوموړی دخپل وخت په تاریخی ،سیاسی او اجتماعی موقف کی وڅیړو. په دی توګه سره به موږ په نقدکی په پخوانیو زړو وضعه شویــو قوانینو پوری ځانونه کلك تړل غوره کار نه دی .تنقید هم دژوند تحول او بدلون سره تغیر او تکامل مومی موږ باید دمطلقی عنعنه پسندی څخه ځانونه وباسو که داسی ونه شی تنقیدی لیکنی به دوخت غوښتنی ته سم ځواب ورنه شی کړای په تنقیدکی نقاد ته ښایی چی باالکل بــی

طرفانه قضاوت وکړی .دی باید په خپلو قضاوتونو کی د اعتدال نــه کار واخلی .دنقاد حکم باید پوره موثوق وی .دادبی اثارو اولیکنو تحلیل ،سپړنه اوپه خپله دلیکوال پیژندنه هغه وخت ښه کیدای شی چی دده درامنځ ته کیدو دعواملوژوره مطالعه وشی په دی برسیره دهغه وخــت غوښتنی حس کړی شی .په نقد کی دهر ډول تیوریکی او شخصی تعصب څخه ډډه کول په کار ده .که چیری په نقد کی سیاسی او شخصی ملحوـ ظات او بدبینی داخلی شی نو داکار به دناقد سترگی پټی کړی .او په زړه پوری مواد به ورنه پاتی شی داکار دنقد ارزښت ټیټوی .نقد باید دیو چاسره دشخصی خپلوی یادښمنی په اساس نه وی دهمدی کبله ده چی لوستونکی دی تر هر څه دمخه دنقاد په شخصی تعصباتو ځانونه پوه کړی لوستونکی باید وپوهیږی چــی دنقاد دشخصی بدبینیو او دوستــی څخه سترگی پټیدای شی که نــه تعصبات یی تر کومه حده پوری دی ایا دبنبنی وړ دی دغه اصل هم په ذهنی او هم په عینی نقد کی باید مراعات شی .

نقد هم دنورو علومو په څیر ډیراوږد تاریخ لری .وایی چی عربــو شاعرانو دجاهلیت په وخت کی اشعار نقد کول .دادبی تاریخی څرگندونو له مخی دوی به نقاد ته خیمه ووهله اوپه هغه کی به دشاعرانو داشعارو په نقــد لاس پوری کاوه دیونان لومړنی ناقد اریستوفان دی ، نــو موړی پوره شاعر اود (٤٥٠ ــ٣٨٦م) کلونو ترمنځ یی ژوند کاوه پـــه یونانیانو کی هم شاعرانو په خپله په نقد پیل وکړ .

غوث شهامت

# نقد او نقدکونکی

دزیری ددرنی جریدی ښاغلـــیچلوونکی ته !

په دی حقیقت اعتراف کول په کار دی چی تاسو په وروستیو کښو کی داثبوت لوستونکو ته وړاندیکړچی جریده او ورځپاڼه باید دټولنی او پرګنو دخدمت اصالت په ځـایوساتی او هغسی مطالب قوم تـــه وړاندی کړی .کوم چی په واقعـیتوکه ددوی په درد وخوړلی شی .

نه هغسی چی دځینو ملګرو دذوق‌تاجوی که داسی وی نو بیا ربنتیانی خدمت له منځه ځی او تصوریی هم‌نه شی کیدلی .دزیری په وروستیو کښو کی مو چی کوم بحث دنقد په باب پیل کړی دی زما په نظر ځکه دزیات ارزښت لرونکی دی چی په پښتو ادبیاتو کی دغه مهم اړخ ډیر کمزوری بریښی اوحتی ځنی کسان‌لادغه ادعا هم کوی چی دپښتو ادب

په پراخه او غښتلی لمنه کی دنقدبچوړی هغه شان ویده پروت دی او کوم محسوس فعل او حرکت یی‌نه دی کړی .کیدای شی دادعا یــا حقیقت ولری او یانه لیکن تر کومه ځایه چی دتیرو وختونو په دوروکی لیدل شوی دی ددی په ځای چــی‌ادبی نقد خپله روښانه او سپیځلی خیره راښکاره کړی‌دشخصی غرضونواو عقدو کرغیړنه بشره راڅرګنده شوی ده .اود علمی او علمانه نقدپه ځای بدرد او ستغی سپوری بیا هم یو مثال په ازاد نقد کی یو سړی‌بی له دی چی په علمی دلیل او منطق استناد وکړی په خپله په یوه‌موضوع استناد کوی اود هر څــه ویلو حق ځان ته ورکوی لیکن په‌مقید نقد کی تر څو یو سړی قوی علمی دلایل ونه لری او په واقعی‌توګه دیوی لیکنی او اثر هر اړخیزه څیړنه ونه کړی نو باید دقضاوت‌دپاره سینه ونه ټپوی هنری اوادبی نقد په دغسی یوه روحیه کی‌کیدای‌شی اود مطلقی بی غرضی په تله باید اثاراو لیکنی‌وتللی شی ،شخصی‌غرض او عقده په کی دخیانت ښه لری .دلری اوبری پښتونخوا پیاوړوپوهانو او ادبیانو کله کله به‌ځینو برخوکی دغه رسالت ساتلی دی اودواقعی نقد بیلګی یی وړاندی کړی دی .خو دغه کار کافی نه دی اوپه‌کار دی چی په اوسنی وخت کــی ددغه مهم او ارزښتمن کار لمن‌پراخه شی .دیو محقق او ادیب دستر کار په باب باید یو ژورنالست قضاوت‌ونه کړی اودغه شان‌یو سیاسی مبصر دناول ،رومان او یا لنډ داستان په کمیت اوکیفیت بایددنظر ښکاره کولو جرات پیدا نه کاندی .که داسی نه وی نو تیره ګډوډی به هغه شان روانه وی اود پښتو ادب یو پیاوړی‌اړخ به دپخوا په شان عاطل پاتی شی .

م ۰ ع

# کره کتنه

تاسی چی دپورته عنوان لاندی اقتراح ته لیکوالان را دعوت کړی دی بی شکه چی دافغانی ادبیاتو په انکشاف کی دا یو بل مؤثر او گټور کار دی خو زه مخکی له دی چی د نقد په تیوری څه ووایم لازم گنم چی خپل هغه پخوانی تصورات اوخاطری دلته په لنډ ډول یادی کړم چی دنقد په باره کی را سره دی .

۱ـ په افغانستان کی معمولاً نقددانتقاد په معنی استعمالیږی اوانتقاد هم په دی معنی چی یو بل چاته به څوك په خپله لیکنه کی یوه‌سلسله سپوری کنځلی کوی .

۲ـدانتقادی مقالی‌په لیکنه کی‌دهغی موضوع ښی او مثبتی خواو ی په نظر کی نه نیول کیږی چی دغور اوتحقیق نه لاندی‌وی خو په اصطلاح یو نقاد به غونډه مقاله اړ وی را اړوی او چی کله یی په کی د «ماما»

تکـــی پیـــــدا کړی نو دواره به‌و ر با نـــد ی گـــــوتی پو ر ی کړی او چی کوم پلویی خو ښه وی‌نود فکر نیلی په هماغه خواته بی مسؤلیته ځغلوی .

۳ـ کله کله داسی هم لیــدل‌کیږی چی یو سړی به دیوی مشخصی برخی لیکنی امتیاز لری اود عمر په‌اوږدو کی به یی دیو ځای او بـل ځای نه صحیح او غلط شیان دخپل‌نوم لاندی را ټول کړی وی خوکله چی یو نوی لیکوال په هغی برخه‌کی دلیکلو څه جرت وکړی نـو د «پخوانی ټیکه دار» له خوا به داسی‌بمبار شی چی بیایی څوك سپن هم وانه وری .

٤ـ موږ معمولاً دنومونو او څیروسره حساسیت هم لرو فقط چی دیو چا کتاب او مقاله چی مو دسترگوشوه نو دواره دا رایاده شی چی د هغه خو می بریتونه نه دی خوښ‌او دا اثریی هم چتی دی بیا نـــو وړپسی عامیانه نقد (پروپا گنـد)شروع شی

٥ـ دلته خو دژوندیو په آثارونقد نه کیږی او کـه وی نـو فقط خوشبینانه خالی صفتونه او څه‌شی‌ته چی نقد ویل کیږی نو هغه خومی مخکی وویل چی بس کنځلی دی .

٦ـ کله چی په یو اثر باندی‌خبری کیږی (ولوکه معمولی هم وی) خو لیکوال یی هغه دځان سپکاو ی‌گنهی او په نقاد غریب باندی نو بیا بـــی ځایه حملی شروع شی .

هغه خو می بریتونه نه دی خوښ‌نو دا اثر یی هم چتی دی بیا نـو

ښاغلـــی هیـــــوادمـــل !

ما دزیری په اخبار کی دنقد داقتراح شوی موضوع لاندی د «محترم استاد پوهاند حبیبی ،محترم دوست،څیړندوی معتمد اود ښاغلی څیړنوال روهی» دری مقالی ولوستی دپوهاندحبیبی مقاله می ډیره خوښه شـوه ځکه چی ستاسی دخپرونی په‌ورځنیو پرابلمونو (ژبنی مسایلو) یی خبری کړی او عالمانه نظـریی وربانـدی‌اچولی دی زما په عقیده هره خپرونه دکره کتنی بیله پالیسی لری اوپه‌اول پلان کی باید هغه موضوعات احتوا کړی چی په خپله به هغـه‌خپرونه خپریږی .

دوهمه نظریه دښاغلی معتمد ده‌دی لیکی . (. . . . که یو ادیب او لیکوال ویوهیږی چی دده لیکنه تعقیبیږی او ضعیفو نقطو ته یـــی گوته نیول کیږی اود مطبوعاتو په‌پاڼو کی فاش کیږی هغه بیا زیات کوښښ کوی او په خپله لیکنه کی‌حتی المقدور نیمگړتیاوی نه پریږدی

او یو منلی او مسلم اثر منځ ته را باسي . . . . ) دا پاس نظریه په عمومي ډول ډیر معقول دی خودلته دتامل وړ ځکه دی چې دمنلی او مسلم اثر منځ ته راویستل یوه نسبي خبره ده . بل داچې ادبي نقد دآثارو دارزیابی په وخت کی دیوه اثر یوازی ضعیفی خواوی نه بلکه ښې خوا هم راسپړی او په یوه لړی کی یی ودروی . بل داچې که موږ د نقدمفهوم دفاش کولو په معنالیکوالوته وروپیژنو نو خصوصاً دځوانانو نه به دڅه لیکنې جرت سلب کړو . بلکه دنقد چې دارزیابی کولو سره په څنګ کی کومه غټه او مهمه وظیفه په مخکې لری نو هغه داده چې دلیکوال دضعیفو نکتو (په اصلاح) سره په څنګ کی نقاد خپل درست نظر هم لیکی او ادبیات په دی ډول یوه انکشافي او تکاملی مرحله طی کوی او یوی بلی دوری ته داخلیږي. ددغه محترم لیکنه چې داسلامی اود هغه دمخکی ادبیاتو دغنا او تکامل په برخه کی یی کړی پښتو لیکوالوته دنقد دمنلو او قبلولو دپوره حوصلی درس دی .

دریمه مقاله چې په دی سلسله کی خپره شوی دمحترم روهي ده . لیکوال دنقد دمنلی شوی تیوری نه په استفادی سره خپل تیزس په دیالکتیکی شکل قایم کړی . فکر کوم چې دغسی لیکنی دیوی خوا نه دیوی مشخصی برخی دتیوری په خپرولو اود بل پلوه دلیکوالو او لوستونکو د مثبتی راهنمایی له پاره ښه ممدواقع کیدای شی . ښاغلی روهی د افغانانو سیکالوژی . مطالعه کړی په دی کوښښ کی دی چې په اول ځل ځوك ونه ویروی بلکه په تدریج سره مخ په وړاندی لاړشي .

نقد Crities اصلاً یونانی کلیمی نه Krinein اخیست شوی او اولنی اثار یی موږ په انتیك ادبیاتو کی دارسطو د (نظم دهنرپه باره کی) لیدلی شو . چې دهنری ایجاددماهیت اود هنری اثارو دارزیابی په باره کی دتحقیقی نظریاتو دیو غنی سیستم محتوا لری . اوس وخت کی ادبی نقد دادبی مطالعاتو دیو مهم جزپه حیث په ټول هنر اواسیستیك کی دادبی تیوری اوادبی تاریخ دپرنسیپونو او انکشافاتو په بنا ډیری وظیفی په مخکی لری .

نقد دیو لیکوال په ځانګړو اثاروژانرونو او هغو موضوعاتو باندی بحث او څیړنه کوی چې لیکوال ورسره ارتباط نیولی دی . دهغو مشخصو اثارو (تباین) هم په نقد کی راڅر ګندیږی چې خپل منځنی نژدیوالی او

یا تناقص ولری ضمناً دلیکوالو په تخلیقی مقاصدو او مفکورویی رنـا اچول کیږی .دمختلفو ژانرونو هنرونو او مختلفو دورو اثارو ته دربط ور کولو په وخت کی دخپل عصر په مفکوروی ژوند کی دفعال او مشخص موقف داشغالولو سـره سم هغـــه سوالونه حل کیږی چی په دغو اثارو کی ورباندی په مستقیمه توګه رڼا نه ده اچول شوی .نقاد لوستونکی تـه دورځنیو مناسـباتو تنـوع اوپیچلتوب څرګندوی او هغو سوالونو ته ځواب وایی چی لیکوال خپـــل لوستونکی ته طرح کړی دی . دی دلیکوال نه هم بی علاقی نه شـی پاتی کیدی .په دی معنی چی دادبی تاریخ دتخلیقی قوانینو او تجربـــودتفاهم پوسیله هغه کنترو لوی او دژوند په نماینده ګی دهغه دلیکوال دهدفونو په ژبه ورسره خبری کوی. دلوستونکی او لیکونکی په وړاند ی دادبی نقد مسؤلیت او اجتماعی ارزښت په همدی کی دی .

ادبی نقد یوازی معاصرو ادبـی آثارو ته نه (چی طبعاً باید په اول سر کی دغور لاندی ونیول شی) بلکه پخوانیو هررنګه اثارو ته توجه کوی اود معاصریت دسوالونو په رڼا کی دهغوی تحقیق ددی امکان پیدا کوی چی پخوانی تجربی دی معاصر مفکوروی ژوند ته راجلبی شی اود هغـــه د اجتماعی سیاسی سیکالو جیکـــی اواستیتیک سوالونو دحل له پاره دی تری کومك وشی .په خپله دموادو پیچلتوب اود هغو وظایفو تنوع چی دادبی نقد په مخکی دی . دهغـــه دژانرونو رنګا رنګی ټاکی .یعنی د یو کوچنی تقریظ نه نیولی تر غټو هغو اجمالی اثارو پوری چی یاددی یاد هغی دوری ادبی انکشاف مطالعه کوی یا هغه چی په عمومی موضوع لیکل شوی وی او یا هغه لیکنی چی دوخت دمناقشی وړ سوالونو په باره کی متضاد نظرونه منعکسوی . (۱)

نقاد دیو اثر په دووخواوو باندی خبری کولی شی یوه یی داثر ژبه ده چی دادبی فنونو او لیکوالی دعمومی پرنسیپونو په رڼا کی ورباندی خبری کیږی بله برخه هغه موضوع اومواد دی چی لیکوال ورڅخه یو څه سابتول او بیانول غواړی دلته دلیکنی متود (سبك) په خپله مرکزی موضوع اود هغی څرنګوالی دلیکوال ایدیا لوژی ،خیری ،اتل اوداسی نور ډیر

---

(۱) ـ وګوری ـ دادب پوهنی داصطلاحاتو قاموس مسکو ۱۹۷۴ ص ۱۶۸ ـ ۱۶۹





شیان (چی دلته یی را وړل دیر وخت نیسی) دنقاد له پاره دبحث موضوعات کیدای شی .

یو نقاد دتحقیق وړ اثر قوي اوضعیفی ښی او ناوړی مناسبـــی او اضافی او داسی نوری خواوی ځنګ په ځنګ ږدی او څه چی دده پـــه نظر درست نه ښکاری باید دښـــی راهنمایی له پاره معقول نظر پـــه واضیح ډول لیکی .

نوټ :ـ یو نقاد باید ډیر ځله دلیکوال نه په هغه موضوع کـــی واردوی چی دی ورباندی خبری کوي ځکه هر رنګه خبری او شخصی او عنادی قضاوتونه نقد نه دی .

ابراهیم عطایي

# معیار.. دژبې او لیک په ساحه کې

دزیری دجریدی په تحول سره‌دامینه ډیره‌عامه شویده‌چې داجریده څوك ولولی باید یو څه پرولیکی ،البته مطلب می لیکوالان دی دڅه لیکو شخه می مراد دادی چې دزیری‌اقتراح ته یو څه ولیکی نو دادی‌زه هم یو څو خبری لرم .

دژبی او ادب په باب انتقادی نظراو څیړنه یو ضروری او علمی کار دی او کله چې دغه موضوع دژبی‌اوادب خاوندانو ته په یوه خاص فرصت کی په ملی منظور ورحواله‌سی نو دلته ډیر پام په کار دی .

شخصی حب او بغض لکه په ټولوټولنیزو چارو کی چې زیان رسوی نود فرهنگ په ساحه کی داسی‌خلق‌اخلاق دنه جبیره کیدونکو زیانونو موجب گرځی .

دزیری په پاڼو کی دپښتو ژبی‌اوادب په باب به هره هغه څیړنه د

فرهنګ په خدمت کی اغیزه ناکه وی چی ملی هدف ته دیوملی ایډیال په پیروی وړاندی سوی وی .اوس به راسو اصل مطلب ته :

دزیری په نویو پاڼو کی ښاغلی معتمد دمعیاری ژبی او لیکنی یادونه په یوه ژباړه کی کړی ده . (وینـــااولیك) ، (ژبه او لهجه) ، (املایی وحدت) او داسی نوری لیکنی هم په دی باب دزیری لیکوالانو خپری کړی دی .

په دی برخه کی که هر شومره لیکنی وسی بیا به هم لږوی ځکـــه موږ وینو چی املایی وحدت دافهام وسیله ده اودا وسیله نن په یوه حالت کی واقع ده .

داچی یو شمیر پښتو لیکنی دحق الزحمـــی په شلاخه شومره پـــــه چټکی غلطی خپروی دا یو زیان دی خو داچی پر دغسی غلطیو دپوهی او پوهنی پوښونه راغوړ وی نودی ته باید دمرحوم خان محمد ایوب خان په اصطلاح بانــــدی «غلطـــی بالای غلطی» ووایو .

دامینه چی هر وخت راولاړه سوی ده او هرچا ته وروړاندې سوی ده چی راځی پښتو تصفیه کړو نو دوی دغلطی سره مخامخ شوی دی .

ښاغلی خیرندوی معتمد په اصطلاح داسی بیورستان یعنی دژبی بـــــی صلاحیته تصفیه غوښتونکی که پخواوه که نن ددوی کار دفرهنګ په ساحه کی یو خطرناك عمل دی .یووخت چی تصفیه غوښتو نکـو اود باندینو کلیماتو پر ځای دپښتو جوړ سوی یو نومونو او اصلاحاتو بازار په احساساتو ګرم ونو هیڅکله هغـه کلیمی قبولی نه سوی چی علمـــی اصل یی نه درلود .

نن چی بیا موږ له دغی پوښتنی سره مخامخ یو اود نړۍ دفـــرهنګ لوی سمندر زموږ پر ژبه څپی راوهی څه باید وسی ؟

دلته موږ له دوو تکلیفونو سرمخامخ یو .

یو داچی پښتو لیکنی په لیری ساحو کی دلیك دود له پلوه توپیر سره لری دا یو تاوان دی بل داچی دباندینو علمی اصطلاحاتو او نومونو په استعمال کی دصلاحیت ساحـــــه دومره پراخه ده چی هر څوك خپل نیلی په کی ځغلولی شی نو دابیایو بل غټ زیان دی .موږ اوس په زغرده دا ادعا کولای سو چی پـه پښتو کی دهر ډول علمی او ادبی متن ژباړه ډیره ډیره ښه او خوندوره کیدای شی .دتایګور غوندی سړی اشعار چی په پښتو ژباړه سوی دی نو په دغه ژبه کی یی نازکـــی او

لطافت پوره ځای نیولی دی .همدارنگه ډیر علمی مضامین چی پـه پښتو ژباړل شوی دی او یا لیکـل‌شوی وی دمطلب په انتقال کی یی هیڅکله کمی نه لیدل کیږی .

خو !

هغه مهال چی لیکوال په احساساتی ډول‌دځانه کلیمه سازی په‌کی شروع کړیده نو دمضمون کیفیت‌هم‌کوه بار کړیده .هغه بله ورځ می په یوه لیکنه کی «وگړ پال» کلیمی‌ته فکر سو چی یوه ښه لیکنه کی ځو ځایه استعمال سوی وه .ماته یی خوند رانه کړ ځکه دا کلیمه‌چی ځوړه پر ژبه سخته تمامیږی نوپرذهن هم‌هوار ځای نه نیسی که ددغه پر ځای د (ولسپال) کلیمه راوړل‌سوی وای نو‌یی هم‌عینی مفهوم افاده کاوه او هم یی تر «وگړپال» لطافت‌ډ‌رلود .

اوس نوهغه د(وگړپال) پالونکی‌لیکوال چی په خپل ابتکار یی داسی نالوسته کلمات راایستلی وی اومرکزی خپرونو هم منلی وی نودلته به دهغه لیکوال تکلف څه وی.چی پر دغسی جوړونو علماً قناعت نه لری .که یی نه ورسره منی‌دابه معیاری ژبی اولیکنی سره‌څرنگه تلقی کیږی ؟

په هر صورت !

داضروری ده چی پښتو ټولنه یادباصلاحیته لیکوالانو یوه لویه‌جرگه وروغواړی اویا دباصلاحیته لیکوالانو یوه‌دایمی جرگه جوړه کړی چی‌دغسی مسایل تر غور لاندی ونیسی اوخپلی‌فیصلی اعلان کړی .

دزیری دجریدی له خوا داقتراح‌دستون پرانستل دیو ښه انجام په انتظار ډیر ښه کار دی .خو دلته‌هم احتیاط ضروری دی چی حاضر تودښت په یوه نرم یخوالی الیش‌نه سی .

د (کی) او (چی) په باب دپښتوټولنی فیصله اود (زیری) له خوا دهغه ابلاغ دا معنی لری چی نورنو باید داکلیمی توحید پیدا کړی .دلته دیوی خبری یادونه ضروری گڼم چی‌دژبی په باب دلیکنی دتوحید له پاره هره فیصله چی وشی هغه بایـــدتعقیب سی .چی که کوم چیری بیا هم‌دهغه خلاف لیکنه کیږی هغه بایدمتوجه کړه شی .

داو دهغو سلو خبرو څخه یوه‌چی‌دپښتو ژبی او ادب په باب یـــی په زړه کی لرم او که فرصت و په‌راتلو نکی وخت کی به په هغــو یادونو لیکنی هم وړاندی کړم .

خیر نمل ژواك

# کره کتنه یانقد

په دی ورځو کی دزیری جریدی‌دکره کتنی او نقد په برخه کی، لیکوالو ته بلنه ورکړی ده او هرپوه غواړی چی د «نقد» په نامه څه ووایی ،په اصطلاح یو او نیم‌دلیکنی او نظر په برخه کی وتومبی

مگر داچی زه خپل پړی او زوروینم‌وگوری !چی له دی ویری چی زما «لاتغیره عقل «دماتی سره مخامخ‌نه‌شی څنگه ښوی ځان تیروم او څنگه دمړی شملی خاوند ته شملو راکاویلای شم .

پاخه پښتانه وایی :

«زړه وره دزورور اړخ ته مه‌تیریږه» خو تا ځوانی نه پریږدی‌چی مادی .دخبرو ملکانو سره مخامخ‌کړی‌مگر زه ؟داد خبرو مین به ووینی‌چی کره کتنه څنگه دنا کره کتنی لوری‌ته بیولای شی ،داځکه کله چی د یوه هندو وطندار څخه دری متره‌ټوکر اخلم دخوشامنده «لالا» ورته وایم په داسی حال کی به دلیکوالی‌ټیکه دار ته څنگه وویلای شم چی

په هر حال دی ته دتیروتلوچال‌وایی :په منځنی پیړۍ کی دکلیسا

تعبدی عقیدی ښکلا ته دښکلا په نظر کتل گناه څه چی دگفر په نظر عقیده گڼله .دی زوروړو داثرښه والی دا باله چی دکلیسا دوچی تقوی اوفضیلت سره هر اثر ښایی برابرشی .دی فکر بند او اسارت یوه ډله ویښ دی ته اړ کړل چی دهنراثر او څه گڼلو معیار مات کړی .

دا ډول چی دهنری اثر او ښه یابد معیار بدل شی .حتی دی ډول نقد دوی دمرگ دروازی ته ورسول‌خو بیا هم دښه والی او بد والی معیار بدل شو په څه ډول وسیله ؟

دفکر درنو خاوندانو ،سره‌دیونان‌او زاړه روم دښکلا په برخه کی معیار ټاکل ښه ایښندل مگر په دی‌لیار چی دیونان او زاړه روم دښکلا معیار به لاتینی ژبه کی نغښتی وی‌په دی وخت کی داکثره اروپایی ملتونو سره دخپلی ژبی سره‌مینه‌او محبت هیره غوندی شوه معیار پر دی ژبه او پردی ښکلیتوب کی‌وگانه شو کومه ژبه او کوم دښکلا معیار .

ژبه -دهنر او ښه ادب ژبه‌لاتینی شوه او معیار دیونان او زاړه روم داصولو منل دی .دښکلا دمعیاردبدلولو ویښ والی ته په ادبی ویښتوب او نهضت کی د «اومانیزم»نوم ورکړه شوی دی .

وروسته لږ وروسته اروپایی‌هیوادونه دی سوچ ته ورسیدل چی دپردی ژبی زده‌کړه اصول اوقوانین‌ورتږی ،هر څه یا هر ډول ښکلیتوب خپلی ژبی او خپل مذاق ته وسپاری.داشخړه خورا لویه وه اود ویښتوب دروان ته یی‌رنسانس وایه رنسانس.

نن په زیری ،دمنځنی پیړی(بابولاله) نه ده تکرار شوی د زاړه او نوی په اساس ؟

زه‌وایم چی نن په اوسینولیکوالوهغه کانه دملی او غیر ملی مننی په برخه کی نه ده شوی اود نوی‌او زاړه سوال خپل او پردی په برخه کی نه دی پیدا ؟او هرلیکوال‌دافکر نه کوی چی پښتو ددومړی اوږد عمر سره دڅو وچو زړو اصولواو قواعدو دالا څه چی دلغت ټاکلو صلاحیت نه لری .راشه چی دومره‌لنډه یی نه کړو فیصله یو څو پوښتنو ته ځان چمتو کړو هغه داچی :

که د (صورت نیسببی) (منځ ته کام په گړیری داثر دپاره غوره کړو موږ دژبی سوچه لغات هغه چی‌راوړو) او نا سوچه پښتو ترجمه

کړی ترکیبونه ؟

موږ دژبې دضرورت په اساس دژبې داصولو سره دژبې داصولو خاوندانو ته داصلاحیت ورکړو چې دژبې نوی لغتونه جوړ کړی او که چا جوړ کړه دمنلو پر ځای شخړه ور سره شروع شی ؟

موږ د «سره‌سالو» «گـدر» (باز)او .... په سمپلـونو اثر بنـایسته کړو که داډول استعارو اوتشبیهاتو تومنه چې‌اقلاً زرکاله دمخه چاد پښتو په وجه زموږ په شعر او لیکنه‌را ننیستلی دی ؟

تر دی به لاهم تیر شو زموږ په‌اثر کی شاعر او لیکوال داحساساتو دخالت ته اجازه ورکړو که پیښه‌دیوه سیل کوونکی په رنگ انځور کړو ؟

موږ دعقل تله داثر دپاره وټاکوکه ددود او دستور منته ور سره ملـه او ملگری کړو ؟

موږ دطبیعت طبعی والی ته په‌اثر کی په درنه سترگه وگورو که دتصنع سر خی‌وهلو او سپیدی‌کولوته هم بنه ووایو ؟موږ دهنر قیمت دزیان او گټی په مله او ملگرتیا دزیان او گټی مزدور وبولو کـه د هنر هدف دگټی او زیان څخه سوروبولو ؟موږ داثر خاوند ته دا امـر ورکړو چی قلم څه لیکی دابد اهمیت‌دی او که دقلم خاوند دیو ټاکلـی هدف ته درسیداو اتل توب ور په برخه کړو .

دادی هغه پوښتنی چی زه یی‌په‌زیری کی دنقد او کره کتنی دمنلو او رټلو دبحث ډیر بولم .

س . ش

# دري دي د نقاد پوښتني دري دي

په اوسنيو خپرونکو کي يو منل‌شوی حقيقت بلل شوی چي ديښه شعر ويونکي بايد مترقي وي ،مرتجعين ښه شعر نه شي ويلای . دا «منل شوي حقيقت» دادبي نقددتيوري له لحاظه بي ثبوته ادعاده او لوی تاوان يي دادي چي کره‌کتونکي په قضاوت کي تير باسي.

په ادبي نقد کي ليکوال نه بلکه دده اثر دبحث وړ وي .ليکوال هم لکه هر بل انسان دټولو هغو ښيگڼو او بد ګڼو داغيزي لاندي چي مهالي او ځايي شرايط يي په ژبوولري .

شاعر جادوګر نه دي .ولي اوپيرنه دي او داسي کومه فوق العاده ګي نه لري چي دي دي په شرايطوزورور وي او دحوادثو څخه دي په څنګ پاتي وي .دادبي نقد يوه‌ګليه‌چي ساده خو پخه ده دا ده چي «شاعر مري خو شعر يي پاتي کيږي»مانا دا چي ادبي قضاوت په شاعر نه بلکه دده په شعر مرتب کيدای‌شي .او حتي کيدای شي چي سړي يي په ګټور توب قضاوت وکړي .

هغه هم باید دشاعر په گټور توب‌نه بلکه دیو خاص شعر په گټور-توب قضاوت کیدای شی وایی چی‌د «شهزاده» لیکونکی کیاول یو مکار او شیطان سړی وو او پاچایانو ته‌یی داولس دتیر ایستلو چلونـــه ښودل دده داثر ارزښت دادی چـی‌خلك یی هم په هغو چلو پوه کړل. وایی چی همینګوی یو مرتجع و،چی دشرابو له لاسه یی ځان وواژه خو دده اثار دنړی په شاهکارونوکی په ختیځ او لویدیځ کی مینا ن لری وایی چی خوشحال په خپله دگورګانیانو په جاه وجلال پسی وو خو دده اثارو دمنقد په نظر دپښتوکلتوری کلتور ژوندی کړی دی ، وایی چی‌په حمیدکی اخلاقی کمزوری‌ده خو دده اشعار دپښتو شهکارونه دی .په اوسنیو لیکوالو سړی په‌زغره نشی ږغیدلای . خو له داوی څخه نیولی تر پوهاند رښتین استادبیتنوا ،پوهاند حبیبی ،لایق ،خادم ، ممنون او سلګونو نورو لیکوالوپوری‌که ددوی په شخصیت او دده داثر دښیګڼو او بد ګڼو ترمنځ دی سیخ‌ارتباط وی خو زموږ اصلی هدف په ادبی نقد کی دارتباط نه بلکه په‌خپله داثر څیړنه ده .

ددری ژبی دا متل چی (به گفتارملا برو به گردارش نه) په ادبی نقد کی بیخی سم دی .اوس چی موږدانیم بنده کلیه چی ادبی نقد په شاعر متکی بولی نه په شعر رده‌کړه رابه شو دخپلی مقالی تعمیری خواته .

په هر ډول نقد او قضاوت کی‌دری پوښتنی څیړل کیږی !

۱ـ څه شی یی ویلی حتی په‌محکمه کی قاضی دمتهم عمل څیړی چی ده کړی دی په لیك کی هم بایددا وڅیړل شی چی لیکوال څه ویلی دی .په دی برخه کی دبنیادم‌قوی‌او اجتماعی تجربی لویه سیمه لیکوال ته خلاصه ده او آزادی چی دهغی‌په هره څانګه لیکنه وکړی فقط باید لیکوال به دی ګرم نه کړی چی ولی‌دی د (الف) په ځای «ب» موضوع نه ده انتخاب کړی .

عشقی حماسی ،تاریخی ،اجتماعی‌اوهر بل ډول مضمون دلیکوال دپاره مجاز دی .په دغه برخه کی دکره‌کتونکی وظیفه داده چی لیکوال‌وینا دی له لومړی سر څخه تر اخره‌پوری‌تشریح کړی یعنی صورت دعوادی ورته ولیکی ،البته لازمه نه ده‌چی‌دلیکوال ټوله لیکنه دی بیا را نقله کړی .بلکه دهغه نظر دهغه جهان‌بینی دهغه دداستان خاکه‌هغه دشعر

کړی او یا هغه منظره دی چی دی‌لیکنی یی اظهارولو ته هڅه کړی را بر سیره کړی .

۲ـ څنګه یی ویلی ؟

کله چی لومړنی دنده کره کتو نکی بشپړه کړه اود لیکوال صورت دعوایی وکښله دویم کار چی منقدته ورپه غاړه دی دادی چی دلیکوال دوینا طرز دی وڅیړی .په دی برخه کی ژبه له خپلو ټولو ګڼو دسپلینو سره لکه لغات نحوه ،استعماری اونوری عروضی وسیلی (دا برخه په نظم کی ډیره دتاکید وړ ده) استدلال‌او منطق داستدلال او نتیجو وړاندی وروسته والی اودی ته‌ورته عناصرڅېړل کیږی دکره کتنی مرکز همدا دی زما په نظر که په پښتو ژبه‌کی عملی نقد مروج وای هر ګوره به موږ له ډیرو مروجو نظمو څخه‌چی دشعر په نامه یی په ورځپاڼو مجلو او کتابو کی لولو او له رادیوڅخه یی اورم وژغورل شوی وو او هم‌به له‌هغو بیخوندو لنډو اواوږدوکیسو چی لکه هنری فلمونه یوه دبلی په څیر ده بچ شوی وو .

کره کتونکی په دی اشعاروعروضی‌ناوړتیا دهغو دمنطقی نسکور توب‌او دصفاتو اغراق او سرطانی پړسوب‌داسی روڼ ښودلی و چی لیکوالـو به نور دهغو لیکلو ته زړه نه وای‌ښه کړی .شاعر دالایسنس نه لری چی په هر لوری یی چی زړه وغواړی‌دشعر نیلی وځغلوی .

شاعر حق‌نه لری‌چی ددی‌لایسنس‌په نامه له ساده انسانی منطق نه سر غړوی .ټولنی اود هغی چاری‌په یوه راڼه منطق روانی وی او البته خبری ،لیونی (شاعرانه) منطق‌ښکرورددرواغ او نسکور استدلال نه ښکلا ده او نه هنر .

۳ـ هغه څه چی ویل شوی په‌ویلو ارزی ؟

کره کتونکی په دریمه برخه کی‌ګویا دلیکنی‌دهار مری،لونګ ،ځونډی سره پرتله کړل ټول یی جلا جـلاوشمیرل اود هغو ځایونه یی ولیدل چی په څه شمار چړاو شوی دی اوایا په هماغه توګه چی لیکوال او نېلی یواځنی رښتیانی‌او منطقی‌طریقه‌ده که نه ؟

دکره کتنی دریم پړاو چی بایدپه ډیر اتیاټ ووهل شی یو اخلاقی فلسفی او منطقی قضاوت دی . زه‌فکر نه کوم چی په اوسـنی وخت کی چی لا کره کتنه په ټولنه کی‌ماشومه ده دا کار لکه څنګه چـی ښایی دډیرو له لاسه پوره او دډیرو نورو دپاره دزغم وړ وی .په دی

پړاو کې نو کره کتونکي سم دمقاضي دی او پــه اثر دمنظور او نا منظور حکم کوی له همدی امله دځینو معیار او ادبي مقرراتو په خیال کې ساتنه ضرور ده یو اساسي‌عنصرچې دی دا اخری قضاوت پری درولای شی هماغه دوه پړاونه دی چې پاس‌یاد شول په تیره دویم پړاو .

په همدی دویم پړاو کې بایدداثر داخلي رغاونه منطق اود تنا ــ قضاوتو مکرراتو سرطاني پړسوب‌او بی تناسبیو شته‌والي اونشتوالي تثبیت‌شی داسې ددریم پړاودقضاوت‌یوه طبیعي نتیجه وی خو په دی‌دریم پړاو کې دقضاوت یو بل عنصر هم‌شته چې پرهغو نورو کې تاکیــد وربانډی نه‌و شوی .هغه داجتماعي‌ژوند عنصر دی چې له دی اثر څخه بهر او هغې ته په بی اعتنایي روان‌دی‌داجتماعي ژوند ارزښتونه دبنیادم دپایښت هلی ځلی او دژوند فلسفه‌دبشري او طبعي پوهنو ذخیره داټول باید دیوه اثر په قضاوت کې دنمك‌په توګه استعمال شی .

لاندنی پوښتنی باید له له اثرڅخه وشی دا اثر څومره دژونــد دشتمن کولو سره مرسته کوی ؟څومره انګیرنی یی داوسنیو علومو سره اړخ لګوی هغه ارزښتونه چې‌په دی اثرکې‌پالل شوی‌ډیر پائیدونکی دی که ژر تیریدونکي ؟

ایا دااثر دشخص (ژر تیریدونکی)درناوی کوی که یوه ایدیال (ډیر پائیدونکی) ایا دیوی اجتماعي پدیدی‌ظاهری بڼه ګوری او که په رنګینو تش مینځو شعارو ځان مشغولوی که څنګه ؟

بله پوښتنه چې په دی برخه کې‌راځي داده چې ایا اثر څه ابتکارلری یا هماغه زوړ مطرب خانه خراب دی‌داپوښتنه ځکه وارده ده چې هنر طبعاً دادب یوازی رکن ابتکار دی‌همداسې چې په طبعي علومو کې تر څو څیړونکی بشري پانګې ته څه شي‌ورزیات نه کړی البته دی او څیړونکی به په هغې دکومې جایزې او یاکومې‌علمي رتبې وړنه وی په ادب کې‌هم که یو اثر دانساني ارزښتونو پیاوړتیاسره څه مرسته ونه کړی او نوی پیغام نوی سوغات ونه لری نو په‌ایکې نه ارزی دا ابتکار هم لفظي‌دی او معنوی که څوك دنورو تیرشووشاعرانو معنی بیا کاروی هم ادبي ارزښت نه لری او که څوك یی لفظي‌خواوی‌لکه تشبهات استعاری ،صفات،

ترمیم او نور را اخلی هم ادبی‌ارزښت نه لری البته له دی کبله چی ژبه دتولو لیکوالو گډه پانگه ده نوخامخادلغتونو او ترکیبونو ورته والی‌راځی خو په دی صورت کی باید دشعرامیل‌ته وکتل شی چی له دی عین مریو یاد عین هار جوړ کړی چی پخوانی‌شاعر جوړ کړی و اوکه یی بله بڼه ورکړی ددی توپیر پیژندنه هم پام‌او مطالعه غواړی .

پام په دی غواړی چی هر ادبی‌اثرکی یو خیال دی چی باید ابتکاری‌وی دخیال دلیکونکی ایډیالی مانی ده اوالفاظ یی ځښتی دی .که مثلاً دیوه اثر الفاظ دیوه بل‌اثر الفاظو ته ورته‌وی دا امکان شته چی هر اثر دی داسی اونلی وی چی یو ځانگړی خیال‌یا تصویر راژوندی کړی .

ددغو نازکیو په خیال کی ساتلوسره سره دی کره کتونکی له ځانه پوښتنی وکړی چی ایا دا اثر په ایکلوارزی او که نه ؟که هیڅ نه وای لیکل شوی دادب په‌پانگه کی څه کمبودی راتله که نه ؟

اوس چی لیکل شوی ایا زموږادب‌او ثقافت ددی له برکته یو گام وړاندی ولاړ که نه ؟

هنر ټوکی نه دی چی هسی دیوی‌شیبی ساتیری دپاره دی خلکو ته وړاندی شی ،لکه درښتونی ژوندیوه‌جدی اړتیا ده دا اړتیا هم جدی ده‌او هم تل پائیدونکی .دیوه ادبی اثرڅخه‌داتمه په ځای ده چی سږ کال دنو بل جایزی وړونکی ،سال بیلو په‌تول‌موږته هغه حقایق راکړی چی‌فلسفی ،ساینس ټولنیزو پوهنو او دینی‌علومو نه دی راکړی .په وروستنی تحلیل کی دیوه اثر قضاوت په‌همدی‌محك کیږی .

عبدالقیوم نورزی

# کره کتنه

ادبی نقد چی دمعاصر ادب پوهنی‌یو خورا مهم جز گڼل کیږی مطلب
یی‌په عملی هنری ،منطقی او تحلیلی‌ډول سره دیوه ادبی اثر کره کول
دی.ادبی نقدپه حقیقت کی‌دلیکونکی‌په گټه داسی زمینه برابر وی چی
لیکوال خپلی نیمگړتیاوی اوښیگڼی‌دواړه وینی .نو په دی حساب نقد
له یوی خوا په لیکوالی کی سالم‌هنری استعداد او تجروبوته انکشاف
ورکوی .او له بله پلوه لوستونکوته داثارو دهنری ارزش پر ټاکلو
برسیره داثارو فکری ارزش وړاندی‌کوی او له دی سره دلیکونکی او
لوستونکی ترمنځ دارتباط کړی‌ټینگوی او په عام ډول ددواړو
عمومی معلومات او علمی سویه ورزیاتوی او نوی کوی یی او په دی
توگه ددوی پام راتلونکی وخت ته اړوی او دادبی اثارو دنوی اوتکامل
دپاره لاره پرانیزی .فکر کوم چی‌اوس خبره دادبی نقد دتعریف اویا
دهغی دوظیفی په باب نه وی ځکه‌ددی موضوع تیوریك اساس اوس
څرگنده او ښکاره دی .خبره په‌دی‌ځای کی ده چی څرنگه لیکوال ونقد
منلو ته او منقد خپل واقعیت څرگندولو ته راوپاروو .اود هنری
خلاقه اثارو دارزیابی له پاره یوموثر هنری میتود وټاکو .

داځکه چې دلته خو تر اوسه پورې داسې یـوه عنعنه جاري ده چې اکثراً دیوه اثر په باب دلیکوال شخصي دوستان خوشبینان بې له یو انتقادي فکر دمحافظه کاري اویادیو بل امید په نسبت پر اثر باندې څو فرمایشي جملې ولیکي او کله کله بیا موضوع بر عکس ددښمنی او کسات اخیستلو په منظور هغه اپلاتي وګوري چې سړی په تعجب کې اچوي که یونیم ریښتني منقدبیا دواقعت له مخې پر یو اثر نظر ورکړي که چیرې دانظر بیا لیکوال دذهني او شخصي غوښتني ســره برابره وي خدای دې نوبیا دمنقدپرده وتړي چې جاري کال ئې زیري او کابل دمجلې ځنې ځنې انتقادونه زما دخبرو له پاره تازه او ژوندي مثالونه دي .

داسې عندي او ذهني نقد نـه یوازې ګټه نه لري بلکه خورازیان رسوي دمثال په ډول فرض کړو دیوه ښاغلي دیو اثر (نظم ــ نثر ــ ادبي پارچه ،کیسه ډرامه کتاب اونور) دچاپ څخه را ووت ښاغلـــی منقـد پـه عنعنوي ډول دلیکوال دمسولیت او انتقادي فکر نـه پرته په متحد المال شنو او زرغونـو اورنګا رنګو عبارانو او جملو ســـره یې وســـتایه او ګټوریې وباله او ورپې هم دا ثر په لوستلو اورانیولو تشویق کړه او په پای کې دده اثرپه کتابخانو ،کتاب پلورنځیـــو او نورو دکتاب دوستانو او زرګونـــو لوستونکو په لاس کښیووت اوس نو که په حقیقت کې نوموړی اثردټولنې له پاره ګټور نه وي نـو مادي تاوان به مو ټولو ته رسولی‌وي او څومره سالم افکار به مـو مغشوشه کـړي وي .برعکس که یو ګټور ،مترقي علمي اثر په باب بې له دې چې وخت زمان ضرورت‌اوشرایط او پوهې تکنالوژې اوسنې انکشافات په نظر کې ونیول شي‌که چیرې نقد په ربښتیا سره سالم او تعمیروو نکې وي او پرواقعیتونو باندې بناوي اود ذهني اندیښنو او شخصي غرضونو څخه په امان وي‌نه یوازې دټولنې دپاره به ګټور شي بلکه په شخصي لحاظه هـــم‌دلیکوال راتلونکې حیثیت بشپړکوي او پرستیژیې لوړ وي .

که څه هم په دې باب ډیرې‌لیکنې شوې دي او حتی اوس هـم جاري دي خو بیا هم یو واحد اوروښانه نظر منځ ته نه دي راغلی. دا ولې ؟

ددی ځواب لپاره باید داپوښتنه یاده کړو چی څه موږ څه شی ته اړتیا لرو .داخبره اوس هر چاته ثابته ده چی موږ نن په داسیزمانه کی ژوند کوو چی دژوند دود ،دستور ،مناسبات او غوښتنی په خورا چټکی سره تغیر کوی ،انسان‌اوددوم طبعت (ثقافت) په ایجادولو دطبیعت دپیژندلو اودهغه په بدلون‌کی ورځ په ورځ په خپل خلاقه قدرت او تاریخی رسالت باندی‌ښه پوهیږی په دی ډول نو هنری اثار چی‌دثقافتی‌ژوند خورا سمسوره برخه تشکیلوی داجتماعی ژوند سره یو ځای بدلون مومی .په دی‌توګه ویلای شو چی زموږ دزمانی هنری اثار دخپلی ودی او تکامل له مخی‌دکلاسیك ادب دتکامل ددرجی نه ډیر وړاندی تللی دی او نه شوکولای چی ننی هنری اثار یوازی دکلاسیك عنعنوی هنری صنایعو اوفنونو له مخی توضیح کړو ځکه نن دهنری اثارو خلاقیت اود ښکلاپیژندنی معیارونه دبیخه ځخه اوښتی دی. دلته منظور دا نه دی‌چی په یوه هنری اثر کی دی‌لفظی اوادبی صنایعو ځخه انکار وشی‌ځکه په دی صورت کی خو اثر چی هر شی وی بیا نو هنری اثرکیدای‌نه شی .بلکه منظور دادی چی په هنری فنونو باندی دهنرمند دخیری‌اود هنری اثردقهرمان اود ټولنی دغوښتنو او ضرورت ترمنځ تناسب‌ساتلو سره سره دټولنی او اولس اوسنی معنوی اړتیاوی په نظر کی‌ونیول شی .اوهنری اثرددی اړتیاوو دپوازینی وسیله شی .په دی لړکی موږ یو سلسله حقایقو او حقیقتونو ته دغاړی ایښودولو‌ضرورت لرو په دی کی شك نه شته چی ددی حقیقتونو تر ټاکلواو موندلو پوره او مطلق معلوماتو ځخه پوره او مطلق معلوماتو ته تر رسیدو پوری به دډیرو مختلفو او مخالفو نظریو سره مخامخ شو څه فرق کوی ؟

دارنګه اختلافات دژوند په هره برخه کی راځی په تیره‌په لیکوالی کی خو دا اختلافات هم حتمی هم‌روا او هم ضروری دی .نه بنایی چی‌زموږ دداسی نظریو مخنیوی وکړوالبته په دی جریان کی دومره غور په کار دی چی د اختلافاتو ازادی‌وټاکل شی ـدا پوله په عمل کی دټولنی او اولس دګټو په نظر کی‌نیولو نه پرته بل محك نه لری داخبره هم باید له یاده ونه باسوچی کله کله حقیقتونه تریخ خوند لری په تیره بیا خو په هنر کی‌به دځینو له پاره په زهرو واوړی.

په دی باندی باید خپه نه شو اوتعجب هم ونه کړو چی په هنـری اثرکی به ترخه اود زشتو واقعیتونوذکر کول روانه وی مګر داخبره خو پوره مشهوره ده چی وایی هنری‌اثردژوند دواقعیتونو هنداره او یـا انعکاس دی‌نو همغه رنګه چی‌هنری‌اثر ښکلا منځ ته راوړی کولای شی دژوندهغه ترخه اوزشت واقعیتونه‌چی تر اوسه پوری بشری ټولنه او په تیره زموږ ټولنه ور سـره‌لاس په ګریوان ده لکه فقـــر ، نیستی ، بی سوادی ، لوږه بی‌کوری، بر بنډ توب ،استثمار ،تیری او نور مرضونه او افتونه) رابرسیره‌کړی‌البته دانه ددی‌له پاره‌چی وستایل شی بلکه ددی دپاره چی وپیژندل‌شی اود علتونو سره یی دبیخه او ریښو څخه وایستلی شی او بیا دتل له پاره محوه او نابود شـــی.
په دی باره کی دنړی یو ستر ادیب‌وایی :

تاریخ دځوان هنر مندانـــو اولیکوالو څخه غوښتنه کوی چی هغه شیان چی انسان ته زیان رسوی‌او مضر دی کشف او رسوایی کړی که اوس هغه شیان دخلکو دمنلووړ هم وی »

غلام حبیب نوابی

# من صنف فقد استهدف

څوکاله کیږی چی زه دپښتو لهمطبوعاتو او ادبیاتو نه لری شوی یم دلیل دادی چی ماته کابل مجله او زیری چی زما پخوانی ادبی او عرفانی ملګری دی نه رسیږی .پهدی ورځو کی دزیری څو ګڼی لاس ته راغلی په اقتراح می سترګیولګیدی ومی غوښتل چی داقترا ح په شاو خوا کی څو کرښی ولیکم.که څه هم اعتراض او انتقاد دچا نه خوښیږی ،بیا هم اعتراض اوانتقاد لږ فرق لری .پوهان پوهیږی ځنی مؤلفین چی تالیف کوی او دخپلو تالیفاتو په اخر کی کله لیکی تقریباً په دی عبارت «هرګاهدر مولفهٔ من نواقص دیده شـود اغماض شود.» ځنی لیکوال داسیلیکی :«در کتاب واثار منَ خطایـــی یا اغلاط ویا سهوی بظهور رسیدهاست مرا اطلاع بدهد ومرا ملتفت نواقص سازید .»

اوس تاسو قضاوت وکړی چیاغماض ښه رار دی ،یادمولفاشتباه او سهوی ته ملتفت کول ؟

په فرانسه کی یو رسام وو هروخت به یی چی کوم رسم یا تابلو

کښله او بیا به یی په څلور لاری کی اینبوده او ځپله به په یوه پټ ځای کی ناست ؤ :لاروی به چی تیریدل خپل نظریات به یی اظهارول او رسام به یادداشتونه اخستل او به نتیجه کی به یی دخپلی تابلو نواقص اصلاح کول او بهترینه تابلو به منځ ته راغله .نقاشی او رسامی شاعری حتی موسیقی یعنی هر شی چی دخلکو دذوق سره ارتباط لری باید داسی ،رتب اومجهز شی چی اهل ذوق هغه خوښ کړی .یو احمق سړی دافلاطون ډیر تعریف وکړ ،افلاطون ډیر خفه شو حتی ویی ژړل ،دهغه شخه یوه سړی پوښتنه وکړه چی استاده ! ولی ژاړی ؟ افلاطون وویل : زه نه پوهیږم چی ما څه بد کار کړی دی چی احمق زما تعریف او صفت کوی.رښتیا خبره داده چی خو شباوره خلك تل په تعریف اوصفت خوشحالیږی یو بل شی هم لیکوال شاعر اومولف ته په ژوند او پس له مرګه لوی غم دی چی دهغه اثر غلط چاپ شی او یا غلط روایات او حکایت تری نقل شی .

که ناقل کتابونه غلط نقل اوخطاطی کړی اوموسیقی نواز اشعار غلط ووایی او چاپخانی اثار غلطچاپ کړی او بی ځایه مصرفات په کی وکړی .شاعر او مولف ته ډیره معنوی صدمه رسیږی اود هغه شهرت خرابیږی بی ځایه تعرفات نامعقول اعتراضات هم دامعنی لری. اوس ووایه چی دا کره کتنه مناسبه او معقوله ده که یه ؟

دا معقوله هم په دی ځای کی صدق کوی «من صنف فقد استهدف»

استاد بینوا

# دنقدخارنه‌دی‌وسی

گرانه هیوادمل زلمیه !

پر زلمیتو ب دی برکت او پرزیار او زحمت دی رحمت ،دپښتنی ژوند پاڼه دی زرغونه اوسه چی‌دپښتو د(زیری) پاڼی دی په نوی بڼه ښکلی دی او جب دی تل په (نقدو) ډك اوسه چی د (نقد) نوم قدر دی هم اخستی دی .ډانده له‌خدایه څه غواړی دوی سترگی ، او بینوایان د(نقدو) نوم خوافسوس‌چی اوس دستی دبینوا بنده سره څه (نقد) نه سته که په «نسیه»دی دلاسه کیږی نودر واخله ځولی ځولی وعدی . . . .

هاـ دایوه خبره می دزړه څوکه‌سکونډی او ته یی هم دزړه په غوږ واوره هغه داچی‌پر «نقد»باندی(خدای دی نه کوی) له «نقد» څخه زیاته څارنه په کار ده نه چـــی«نقب» جوړ شی ؟ !

رابا ندی خانده مه ،زه اپلاتی‌نه‌وایم تا به هم په کوچنیوالی کی د

بوډيو ښځو له خولو په افسانو کی‌اوریدلی وی چی ځنی داسی مړی سته چی پولی (نقد) ته (نقب) کینی‌او هغه رڅکاری .همداسی ځینی تنگ نظرونه د دادبی نقد) په بڼه کی ځینی مضر موږکان لری چی که جدی څارنه یی ونه سی د (پښتنی‌وحدت) ریښو ته پټ نقبونه کینی او په خپلو زهر لرونکو غاښو د(پښتنی وحدت) په ریښو کی بیل بیل سوری جوړ وی ·

اود سیمه ییز بیلوالی زهرپه‌کی پاشی .که څه هم زه یقین لرم چی ستا او ستا ملگرو په ډیر پاك‌پښتنی احساس غوښتی دی چی د پښتو ادبی نقد منځ ته راو باسی‌او هم می په دی باور دی چی د وسیع فکر او نظر خاوندان به هم‌په ډیر سپیڅلتوب په دی لاره کی ستاسی سره مله سی .چی داداوړه(یعنی هم ستاسی ،طرح او هم د پښتو پوهانو ملگری) دډیری ستاینی‌وړ ده خو بیا هم دتنگو نظرو له موږکانـــو څخه بی فکره مه اوسی‌چی ستاسی (نقد) په (نقب) الیش نه کړی .او په دغه وخت کی چی‌په پښتنی دنیا کی تر هر څه دمخه د(پښتنی وحدت) ټینگښت ته‌زیات‌ضرورت لیده کیږی .بیا د (ادبی نقد) په نامه دسیمه ییز اولهجوی‌اختلاف مړه اورته پلته ونه وهله شی اود اتفاق له هیلی څخه نفـاق‌ونه زیږی او پښتانه لیکوال په خپلو منځو کی سره اخته نه شـی‌اودا هغه خبره ده چی زما دزړه څوکه سکوندی او تاسی هم ورته‌جدی څارنه ولری ·

زه به دعا کوم چی « (بیټ نیکه )دی ستاسی ادبی نقد **دتنگو نظرونو** او مضرو موږکانو څخه په امـان‌وساتی ·

**ستاسی بی نقد ملگری بینوا**

بریښ

# عملي نقد

دزيري ښاغلي مسؤل مدير !

زيري ته ستاسو په راتلو سره‌په زيري کی ستاسو په ابتکار د ادبي نقد داقتراح پیلول یو پــه‌زړه پوری اود پښتو ادب له پاره یو گټور کار ؤ چی دفاضل استادپوهاند حبیبی په لیکنه شروع شو او ورپسی وار په وار په دی‌برخه کی صلاحیت لرونکو پوهانــو او لیکوالو مقالی ولیکلی چی سلسله‌یی لاتر اوسه روانه ده .دامقالی په دوو برخو ویشلای شو لومړی‌یی دعملی نقد په باب دی چی د پښتو ژبی او ادب ستونزی په‌کی‌خیړلی شوی اود پښتو روان‌جریان ته کره کتنه په کی شوی ده .خو‌یوه بله برخه مقالی یی بیا دنقد دتیوری‌اوپه دی‌برخه کی دنړیوالوپوهانو په ادبی تجر بو ولاړی دي.

خو بیاهم باید دا ومنو چی داموضوع دپراخوالی له امله ډیری څېړنی او ډیری خبری غواړی اوخصوصاً په پښتو کی موږ اړه‌وینو چی‌په دی برخه کی ویړی اوډیری‌خبری وشی او پښتو ادب ته ددی خبرو په رڼا کی دسالم او صالح‌نقد لاره خلاصه شی نو ځکه باید ووایو چی :

**گمان مبرکه پایان رسیدکارمغان**

**هزارباده ناخورده دررگ تاکاست**

په همدی توسن په خپرو شــــوومقالو بسنه نه ده په کار اوخصوصاً دادبی نقد دتیوری په باب دډیروخبرو او لیکنو ضرورت شته .

ته به څه فکر کوی چی گوندی زه به په دی باب څه لیکم خو باور وکړه چی زه هم لکه ستا نور یوشمیر هغه محترم لیکوال چی په دی برخه کی یی مرسته در سره کړی ،لوټه ږدم او تر اوبو تیریږم. که کوم وخت بریالی شوم البته څه به درته ولیکم اوکه نه نوزه په دی لیکنه کی نه عملی نقــــدکوم او نه دنقد په تیوری څــــه وایم بلکه زه دلتــه ددی دواړوترمنځ یو پیشنهاد لرم او هغــه دادی :

لکه څرنگه چی زیری دادبی‌نقدورپرانیست همدا راز باید پښتو ټولنه دعملی نقد له پاره ورپرانیزی‌او هغه داچی پښتو ټولنه دی ددی له پاره چی پښتو ادب سالمه وده‌وکړی دعملی اوابتکاری نقدغونډی جوړی کړی او هغه داچی د هری‌میاشتی په اوږدو کی دی یولیکوال خپل اثر دنقد له پاره کاندید وی بیا دی دصلاحیت خاوندانو اود ادب علاقمندانو ته په‌دی غونډه کی‌دبرخی اخیستلو ،بلنه ورکولــه کیږی .په غونډه کی دی شعرونه،افسانه او نوری لیکنی تر بحث او څیړنی لاندی نیــول کیــږی اولنډیزیی دی په زیری کی دپښتو ادب دټولو علاقمندانو لــه پاره‌خپریږی .

زما له نظره دپښتو ادب دپرمختگ له پاره دایوه ډیره او په زړه پوری لار ده او پښتو ټولنه به وکړای شی چی له دی لاری د پښتو ادب ته لوی خدمت تر سره کړی .

سر شار روشنی

# ادبی چاڼ

تقریظ چاڼول او انتقاد دادبیاتو او علومو په برخه کی یو ستر باب تشکیلوی په دی معنی چی دیونان پخوانیو فیلسوفانو له ژوند څخه رانیولی بیا تر اوسه پوری دحقایقودرابر سیره کولو او دادبی مکتبونو دصیقل کولو او پر مخ بیولو دپاره ارزښتناکه معیار بلل شوی دی . مگر که اوسنی وخت کی دچاڼول او تقریظ موضوع تر څیړنی لاندی ونیسو په نشراتو او مطبوعاتو په تیره بیا زموږ په خپرونو کی هغه ستر حقایق چی په واقعی توگه چاڼ او تقریظ شوی وی ډیر لږ لیدل کیږی.
له هغه وخته راهیسی چی ارسطو دخپل استاد افلاطون په نظـریاتو باندی انتقاد وکړ او بیایی دغـه حقیقت ته هم گوته ونیوله چـی (زه دخپل استاد سره ډیره مینه لرم خو حقیقت تر هغه ماته گران دی) نو په کار دی چی حقیقت وو ایم بی له دی چی دخپل استاد احترام کم کړم ،دانتقاد او چاڼولو موضوع بیا تر اوسه پوری بیلی بیلی مرحلی تیری کړی دی .دغه لنډه کیسه دچاڼولو او تقریظ واقعیت په ښه توگه موږ ته راښی په دی معنی چی باید :

۱ـ تقریظ او چاپولو دپاره معیارونه باید په علمي اساس ولاړ وي دمثال په توګه که یو ادبي شعروي که نثر ،داستان وي او که ادبي ټوټه علمي څیړنه وي اویاابداعي اثر، باید دهمغه اثرله مخي په داسي معیارونو وسنجول شيچيپه علمي توګه منل شوي وي او حقیقت تراحساساتو لاندیرانه شيښایي یوه ادبي ټوټه دیو انسان دعواطفو یا غریزي حالاتو بیانوونکيوي او یا دده دمینو بیان وکړي نو ددي ټوټي سنجول او چاپول داوسنیو شرایطو له مخي دریالیزم په مکتب کي باید داسي ځای ولريچي دژوندانه دحالاتو اود زمانـــي دنیتي یادوري بیانونکـــي وي اولوستونکي دي ټکي ته متوجه کړي چي ایا لیکوال په خپلي دغي ټوټيکي تر کومه حده پوري دټولني د حالاتو او شرایطو بیان کړی دیاوترکوم حد پوري دده له لیکني څخه دنورو دبیداري یازده کړي درجه لوړیږي یا هم دده دژوند دمحیط شرایط څرنګه دي ؟

یاکه یو سړی دتحقیق اوڅیړنيله مخي کوم اثر منځ ته راوړيوي نو په کار دي ،چي دهغه چاپولدهماغه عصر یا دهماغه علم له معیارونو سره سم وسنجول شي اودهغه عصر (که تاریخي اثر وي) معلومات دیو مورخ یا لیکوال دنظریي له مخي ونه سنجول شي .بلکه ټولو اسنادو او مدارکو ته مراجعه وشي او په هره اندازه چي تاریخي اسناد خپلي دوري ته نژدي وياو داسنادو له مخي وي داعتباروړ ګڼل کیږي او باور پري زیات ویاو پهعلمي څیړنو کي دهغو علمي قواعدو او تجربو معیار په نظرکيوي چي عملاً ثبوت ته رسیدليوي اویا په مثبتو تجاربو کي دکلـــيقواعدو خاوند وي او یا دیوي نوي قاعدي اوفورمول دچاپ په باره کيثبوتي دلایلو ته مراجعه وشي نه داچي په سطحي او افواهي خبروباندي استناد وشي .

۲ـ داثارو دچاپولو په وخت کيداثردشکل اومحتوي ترمنځ دمعمولو قواعدو درعایت سره سم دقضاوتپه نظر کي ساتل ماته ضـــروري بریښي .په دي معنی چي که دیواثر جامه یا شکل کمزوري وي او محتوایي علمي بنسټ ولري نو پهچاپولو کي یې باید هر اړخ پـــه بیله بیله توګه تر قضاوتلاندیونیول شي او حتی که دشکل او

محتوی ترمنځ دبی اندولی له املهٔ تفاوتونه موجود وی یا په دواړو لحاظونو کمزوری وی‌نو کمزوری‌یی باید جلاجلا تر بحث لاندی راشی .

۳ــ چاڼ کوونکی دخپل قضاوت‌په وخت کی باید هیڅ خبره تـــر شخصی عواطفو لاندی ونه څیړی بلکه دخپل قضاوت معیار هغـــه اصول او چلند وګر ځوی چی یه رښتیانی توګه محکوی ولوکه ،دغه اثرپر خپله شخص باندی انتقادوی.

موږ ډیر ځله دداسی قضاوتونوسره مخامخ کیږو چی دیو علمی‌اثر یاادبی ابداع په مقابل کی دمبالغی‌ترحده پوری منفی یا مثبت نظـــر پری څرګندیږی مګر استدلال پـــه‌کی بیخی کمه برخه لری اویوازی دښه یابد قوی یا کمزوری اصطلاح‌بی له دلایلو څخه استعمالیږی‌چی دغه چلند موږ ته هغه فکاهی را‌ــ یادوی چی زده کوونکی دتاریخ د یوقهرمان په باره کی وویل .زوروزسړی ؤ زورور کارونه یی وکړل» نوښوونکی هم ورته وویل «زوروره‌نمره می در کړه» هوکی !

دقضاوتونو او چاڼولو معیاردلته‌په زیاتو مواردو کی شخصی دوستی اویا دښمنی وی چی په خپله دغه‌چلنداستدلال کمزوری کوی‌داخلاقی اصولو څخه وتل اود اهانت او بدوویلو دعقدی خلاصول دچاڼولو معنی نه ورکوی .

دمعیارونو په نظر کی نیول‌هم‌داشخاصو له نقطه نظره توپیرلری دځینو خلکو دپاره دمعیارونو اساس‌ایدیالوژیك وی او بیا په ځینـو موارودوکی سوچه علمی بنستونه‌وی‌چی دهرچا او هر ځای دپاره دمنلو وړ وی .

زموږپه هیوادکی هنری‌یادبی اثارودچاڼولو په باره کی‌لکه دنوروعلمی اثارو په شان مأخذ او منابع چـــی‌معیارونـــه تشکیلـــوی یا کـــم دی اویا دپاملرنی وړ ګرځیدلی نه‌دی چـــی دیـــوه اثر په باب د یو تن له خوا دوه قضاوتونه‌شوی‌دی دلته نو دغه عمومی پرنسیب یا دول په کار دی چی قضاوت‌بایدهر څه ویلو باندی وی نه هـــر شخص باندی .

دادبی مکتبونو منځ ته راتګ‌اودهغو اساس داثارو منځ تـــه راوستل یا په هغو معیارونو باندی‌دقضاوت په وخت کی تکیه کول

اوس په زیاترو ځایونو کی مثبت‌چلند بلل کیږی که څه هم ددی امکان هم شته چی دایدیا لوژیودپیروی په بنا دهمدغو مکتبونـو څخه ناوړه استفاده وشی مگر په هر حال دادبی دورو یا مکتبونـو دمعیار دپاره باید همدغو پرنسیپونوته مراجعه وسی او چاپوونکی د قضاوت معیار دهمدغو اساسونوپه بناټولنه اودټولنی دافرادو داکثریت فرهنگی خدمت اود فرهنگ دسویی‌لوړول وی یعنی دلیکونکو په تیره بیادهنرمند انو، لیکوالو اوشاعرانوته دزیاتی خوشبینی او زیاتـــی بدبینی په ځای چی‌دبیځایه توقعاتو یامایوسی‌سبب گرځی‌دوی په کلی‌توگه دقواعدو څخه خبر کړی شی اوددوی داثارو په قضاوت کی مثبت او منفی ټکی دواړه ،ورته وښودل‌شی تر څو دویلو او زده کړو په وخت کی بی لاری نه شی او کومی‌لیکنی چی چاپیږی داسی اثار باید راتلونکوته پری نښودل‌شی‌چی دخنداوړوی اویا دادب او انسانی کرامت دپرنسیپونو په خلاف دښکنځلو اویا ستاینلیکونو څخه ډك شوی وی.

خير محمد ساد

# نقد یا کره کتنه

دزیری دجریدی مدیر ښاغلــــی هیوادمل !

دهر څه نه دمخه دنویو اوغوره‌مسایلو په رامنځ ته کولو ســره درته کورودانی وایم .دزیری په ډیرو ګڼو کی داقتراح په لړ کی دنقد او خصوصاً ادبی نقد په برخه کی دپوهو او منلو لیکوالو له خوا مقالی ولیکل شوی اودغه مسئله یی تر ډیره حده پوری روښانه کړه.

ځنی مشترك ټکی داکثرو ښاغلــولیکوالوپه مضمونونو کی موجود وو چی اکثرو یی دنقد یا کره کتنی‌داړولی تعبیر یا دنقد څخه شکایت کړی و .داسی بریښی چی دوی دخپلو ترخو تجربو عکس العمل او انتباه څرګنده کړی وه .

ځینو ښاغلو لیکوالو دنقدمسئله یوازی‌دژوندیو اوموجودو هنرمندانو او ادبی اوهنری اثارو ته منحصرکړی وه او پخوانی ادبی او هنری اثاریی له پامه وتلی ښکاریدل ،ځینو بیا نقد او خصوصاً ادبی نقد دفردی اصالت دمفکوری تر اغیزی‌لاندی څیړلی و اود اجتماعی اصالت نظریه یی هیــره شوی وه ځینوښاغلو لیکوالو دتنقید مسئله «ادب دادب یا هنر دهنر له پاره» اوځینونقدد«ادب دژوندله پاره» داساساتو له مخی تشریح کړی دی.

که ووایو چی یو هنری اوادبی‌اثر ظاهری او معنوی ښکلا یافورم اومعنی له مخی تر کره کتنی‌لاندی‌نیول کیدای شی او دیو هنری اثر

دواړه اړخونه په خپلو ځایونو کې‌دپوره اهمیت وړ دی. نو زموږ د موضوع مسیر دنقد ماهیت ته ځی‌او اوږدوالی پیدا کوی .

څه رنگه چی اجتماعی اصالت‌دعقیدی له مخی ټولی اجتماعی‌پیښنی دداخلی او خارجی شرایطو دتغیرسره موازی تحول مومی نو خپله ادبی او هنری اثارهم چی داجتماعی‌ژوند دپیښنو څخه دباندی نه دی، ددغو تحولاتو تابع اواغیزه منونکی‌دی دمثال په توگه که چیری د اروپا ادبی او هنری مکتبونه اوسبکونو ته په کرونو لوژیکه‌توگه نظروکړو اویا دختیځ دمختلفودورو‌ادبی او هنری سبکونو اود هروخت هنری او ادبی ارزښتو نو ته پام‌وکړو نوداسی نتیجی ته رسیږوچی داجتماعی اواقتصادی تحولاتوداغیزی‌له کبله ادبی او هنری ارزښتونو هم‌تحول کړی اوانکشاف یی‌موندلی‌دی په ختیځ کی ادبی محافل او ټولنی ترډیره وخته پوری دمذهبی‌حلقو او درباری موسسو له پاره استخدام شوی اود همدی مراکزوپه گټه او نقص یی ارزښتونه هم ټاکل‌کیدل اوداقتدار ددغو مرکزونوڅخه دباندی اثارو ته دهنری او ادبی تخلیق په سترگه نه کتل‌کیدل .

اروپایی ادبی او هنری مکتبونه‌او سبکونه هم ددغو مرکزونو تر اغیزو لاندی وو .هغه وخت هم‌ادبی‌او هنری اثار نقد کیدل اود کره کتنی دهغه وخت دموضوعو قوانینوپه تله یی تلل .مگر دغه قوانین طبعاً داجتماعی مسلطو قدرتونو دمرکزونو په طبع اوصلاح اوښیگڼه وضع شوی وو .

موږ‌نه یوازی داوسنیو ادبی اوهنری‌اثارو دکره کولو حق لرو اوضروری یی گڼو ،بلکه موږ دپخوانیو اثارودنقد او کره کولو جواز هم لرو . پخوانی او لرغونی هنری او ادبی‌اثار دخپل وخت دشرایطو اومنطق په لحاظ موږ ته خورا ډیر ارزښت‌لری او قدریی کوو .مگر زموږ د زمانی اجتماعی او اقتصادی شرایطدپخوانیو احوالو او کیفیاتو سره توپیر لری .نو زموږ دتول تله باید بیله اوزموږ دزمانی دهوازینو اوتول کاڼو سره عیاره او سمه وی.موږ که له یوی خوا دمدحیه قصیدو اویا درباری تابلو گانو دهنری‌ښکلاپوره قدر کوو .مگر له بلی خوا موږ هیڅ مکلفیت نه لرو چی دغزل‌قصیدی یانورو هنری اوادبی اثارو

روح په شاهی درباری معیارونووسنجوو ځکه چې موږ دتشو ستاینو او گل او بلبل دتغزل په عوض دانقلابی اواجتماعی نهضتونو پخوالی او په پای کی داکثریت دژوندانه دمثبت تحول او سمون عملیی ته اړتیا لرو ،یا په بل عبارت هنردژوند له پاره غواړو او دا کار د زمانی جبر او حتمی تقاضاده . نوپه دی اساس زموږ دنقد اصول د پخوانیو او لرغونو قوانینو سره‌توپیر لری او برسیره پردی چی دلرغونو او کلاسیکو دادبی اوهنری‌تخلیقاتو داستادانو درناوی کوو ، خپل ضرورتونه او اړتیاوی هیڅکله له یاده نه باسو .لکه څنگه چی دنوروعلومو قوانین دفردی انحصاراوممتاز قشر دتمایلاتو څخه دباندی ساینتیفیك قوانین لری او هغه په‌هر ځای کی دتطبیق وړ دی .نقد یا کره کتنه هم اوس داجتماعی‌اصالت دتقدم دمفکوری په بنیاد ولاړه ده اود پوهنی په معیارونوبرابر مقرارت او قوانین لری. نن زموږ ادبی او هنری اثار دټولنی‌دفایدی او استفادی او اجتماعی انعکاس ددایری څخه دباندی نیمگړی‌بولو .یا په بل عبارت داجتماعی گټورتوب اصل باید دیو اثر په کره‌کتنه کی لومړی مقام ولری .نن ورځنی هنر مندان او ادیبان او دهنری اثارو موجدین نوی وظایف اود وخت دتقاضا سره سمی وظیفی‌په غاړه لری .برسیره پردی چی په کره کتنه کی دیو اثر ښکلاییزاو ابتکاری اړخونه په نظر کی‌نیول کیږی ،اجتماعی گټورتوب اواولسی‌ښیگڼی یی هم ضروری اجزا اولازمی برخی دی .

نو څرنگه چی نن موږ دهنری‌اثارو څخه کومه توقع لرو .نو د نقد اصول او قوانین هم باید په‌همدی هیله برابر او منطبق وی. نقد دادبی نیمگړتیاوو لیری‌کوونکی‌او بشپړوونکی دی او باید له دی وروسته دپر مختگ پوره زمینه‌ورته مساعده شی او زموږ په تعلیمی ادبی او هنری مراکزو په‌تعلیمی نصاب کی شامل شی . متاسفانه چی تر اوسه پوری دغه‌اصل زموږ په ټولنه کی ډیر نوی دی او کله نا کله له خپل اصلی‌مسیر څخه انحراف کوی.

برسیره پردی چی ادبی نقدعلمی‌قوانین لری نود یو هنری او ادبی اثر کره کتونکی هم په ځینواصولواو مقرراتو مکلف دی .هر څوك دا صلاحیت نه لری چی په عنعنوی‌توگه دی دیو چا دخوشالولو اویا

دشخصي میني او احترام له مخې یا برعکس دکرکې او شخصي تعصب له مخې پرېوه اثر کره کتنه وکړي دومره وارد وي چې دلیکوال څخه کره کتنه دمقرراتو دمراعات نــه برسیره داهم ضروري بولي چــې منقد باید دمطلوب اثر په رشته کې یې په دغه برخه کې علمي سویه کمه نه وي بلکه په هغه برخه کې دعالمانه نظر خاوند وي.

موږ باید نقد په ادبي اوهنري اثارو برسیره دنورو علومو په اثارو کې هم رایج کړو اوانکشاف ورکړو او دغه دتکامل لاره ده .موږ باید دایګرایزم په خلورو دیوالونو کې بندیان پاتې نه شو او نقد دهر چا له پاره او لومړي دخپل ځان له پاره دژوندانه دتکامل یو ضروري عنصروبولو .دهر هنري تخلیق خاوند دخپل اجتماعي چاپیریال او خصوصاً اجتماعي موقف څخه متاثر وي اودده په شخصي ژوند کې پوره اغیزه لري .نو دغه کیفیت دده په هنري اوادبي اثرکې حتماً را دوڅاره کیږي. موږ کولای شو چې دمقایسوي میتود له مخې هم دڅو هنري تخلیقاتو د خاوندانو اثار یو تربله سره پرتله کړو اود هغه وخت داجتماعي تضادونو اود اجتماعي موقفونو دټاکلو نتایج راوباسو .

په عنعنوي توګه تر ډېره وخته پورې زموږ دادبیاتو په تاریخونو کې ادبي دوري شاهانو او ادبــي سبکونه اشخاصو ته منسوبیدل . مګر دافکر نه کیده چې ادبي دورې او ادبي سبکونه هیڅکله پــــه اشخاصو پورې منحصر کیدلای نــه شي، ځکه ،لکه څنګه چې ادب یوه اجتماعي پیښه ده همدا راز ادبي دورې او ادبي او هنري سبکونه هم دټولنې محصول او زیږنده ده.نو په دې اساس نقد هم اوس اجتماعي کیفیت هیڅکله نه هیروي اوهر هنري اثرته دټولنې داجتماعي اقتصادي او سیاسي حرکت له مخې ګوري او ارزښت ورکوي .

که چیرې اوس دیو شاعر او یادیوادبي اوهنري اثر خاوندپخوانیو شاهي دربارونو او له منځه تللیورژیمونو پیښې کوي او په ښکلیو لفظي او معنوي ترکیبو سره زاړه اجتماعي اوسیاسي روابط تمثیلوي اوستاینه کوي نوایا دابه دخندا وړنه وي؟هیله ده له دې وروسته دغه غوره اصل چې دادبي او هنري انکشاف یوضروري اوحتمي جزدی پرمختګ وکړي او د ادبیاتو پـــه پوهنځي کې ورته دتعلیمي نصاب په منځ کې ځای ور کړشي .تر څو زموږدعصر دغوښتنو سره سم غوره ادبي او هنري اثار منځ ته راشي .

علي محمد سوبمن

# کره کتنه

دزیری دجریدی گرانو لوستونکوته په جوته وی چی له پنځو میاشتو نه راپدی خوا ددی اخبار دلومړی‌مخ په لمن کی داقتراح ترنامه لاندی نقد کره کتنه ،ادبی نقد ـعملی نقد .... او نورو عنوانونو په رامنځ ته گیدو سره دمخوررواو پوهو لیکوالو کره ،علمی او پاخه مضمونونه نشر شول او داړی لاجریان لری چی زموږ سترگی یی دادبی نقد له تیوری نقد کولواو نورو موضوعاتو سره چی په اقتراح پوری اړه لری اشنا کړی.که څه هم ددرندو لیکوالو په مضمونونو کی دورته والی تکی‌شته :داچی په پښتو ادب کی په دی باب پوره او بشپړ مواد دمخه تر دی نه وو خپاره شوی .نوځکه هر چاته په تیره دزیری لوستونکوته په زړه پوری اونوی وو داعلمی او ضروری کار دزیری دجریدی دپیل نه (۱۳۱٦ او ۱۳۳۲) تراوسه (۱۳٥٥ کال دلیندی ۲٤) پوری‌چانه‌وکړی که څه هم دنقد تاریخ ډیر اوږد او لرغونی دی‌چی ولی (ریښه)یی لرغونی یونان ته رسیږی خو زموږ ټولنه ورسره پوره اشنا نه‌ده ،داځکه ادبی نقد زموږ دټولنی (پښتو ادب) کی تر اوسه ډیرابتدایی او لومړنی بڼه لری دساری په ډول که چیری څوك دچا مضمون‌او علمی اثر ته دسمون او اصلاح دپاره دانتقاد گوته ونیسی ،ددی‌پرځای چی دمضمون اواثر خاوندان دا انتقاد دخپل اثر او مضمون دکره‌کولو دپاره ومنی ډیره ترخه پری

تمامیږی اود مقابل ځواب مفهوم اودلیکنی ډولونه یی دخپل عصر له نظره داسی مطالعه کوی چی هم‌یی غوره او هم یـی کمزوری او ضعیفی خواوی ، ټولنی او خلکو ته‌په گوته کوی .
دساری په توگه که موږ وغواړوچی دخوشال خان ختك پر اشعارو یوڅه ولیکو لازمه ده چی دخوشال‌دوخت سیاسی ،اجتماعی ،اقتصادی اوضاع او ورپسی خپله دخوشـال‌شخصیت او همدارنگه دهغه وخت دشرایطو ترڅنگه بیا په خپله دخوشال خاص موقف او دده ځانگړی اوصاف اوداسی نور ټول په خپل‌مورد داهمیت اوپاملرنی وړدی چی باید له نظره ونه غورځول شی .
تر دغو وروسته بیا دخوشال دشعر نوعه او بیا دهغو لفظی او معنوی ښیگنی او معایب داشـــان‌کیدای شی چی دبدیع ،بیان ،معانی، عروض ،قافیی اوداسی نورو خصو. صیاتو له نظره پـه دقیق ډول وڅیړل شی ،نو هغه وخت کیدای‌شی چی نقد په بشپړه توگه خپله بڼه پیدا کړی .
په هره اندازه چی نقاد دنقدپه عمومی قوانینو باندی ښه وپو ـ هیږی او ددغو قوانینو په لمن‌کی‌دنقد تیوری غنی کړی په هغــه اندازه نقدښه روښانه‌کیږی څومره‌چی نقد غوره وی په هغه اندازه علمی او هنری اثار منعکس کوی‌داځکه دنقد تیوری دفزیك دانعکاس دتیوری په څیر ساده نه ده چی‌نور بیر ته منعکس کوی ،له دی امله نقاد ته په کار ده چی دیوه‌اثر ټول مواد راوانخلی ،بلکه هغه څه دی راواخلی او منعکس دی‌کړی‌چی تر ټولو ،کمزوری او یا غوره وی ،پوهیږو چی نقاد هغه څوك‌دی‌چی ادبی تخلیقات څیړی، دڅیړلو او مطالعه کولو نه هدف دادی چی‌نقاد دڅیړلو نه وروسته ددغـــه ادبی تخلیق په ښو او بدو باندی‌حکم کوی دا وجه ده چی پـوهان وایی تنقیدی ادب دتخلیقـی ادب‌ترجمان دی .داخبره سمه او پرځای ده .یو ادیب دژوند څخه ټول‌موادنه راخلی بلکی هغه څه را اخلی او منعکس کوی یی چی ترټولوغوره‌او انتخابی وی ،له دی کبله وایو چی ادب په ټیپیکو شرایطو باندی‌دټیپیکو کریکټر ونو رسمول دی .
سوال دلته دی چی سړی څنگه وکولای شی چی دغه ډول ټیپیك کریکټرونه په‌ټیپیکو شرایطو باندی‌ترسم کړی ،ددی کار دپاره پـه لومړی درجه دژوند سره درابطی‌نه قطع کول دی ،داچی نقاد دادیب

اولیکوال په اثر باندی کره کتنه کوی نو لازمه ده چی موږ باید د نقاد په هره خبره باور ونکړو ،پری ونه غولیږو او هره لیکنه یی باید ونه منو دده او لیکوال دواړولیکنو ته باید ځیر شو .دهغو ی پرتلی او مقایسی نه باید هغه څه معلوم کړو چی نقاد ورته کوتـه نیولی‌ده .داځکه ځینی پوهان داسی‌نظر لری چی ادیب ،شاعر او ناظم دکوټی کونج کی دالهام په توګه دادب ،شعر او نظم مقام ته رسیږی که ځیر شو داخبره هم بی څه نه ده ځکه دادکوټی په کونج کـی ناست سړی ټول هغه مواد چی دخپل ژوند په جریان کی یی لیدلی او کتلی وی فارمول بندی کوی اودادب شعر او نظم قالب ته یـی برابر وی او پرته له دی بل کوم‌سحر اوجادونه شته ده چی ده په کونج کی پوخ کړی وی . . .

نقاد چی ددی خوار فرمول بندی‌شوی مواد کوری او هغو ته کوته نیسی نو لازمه ده چی باید دډیرغور نه کار واخلی هسی چټی په چټی دهغه نیمګړی خواوی مجوتی نه کړی .ځکه دنقاد سره دنقدحساسه تله ده که چیری دی خپل مواد دنقد په غلطه تله وتلی دټولنی‌له قضاوت اوتللی تلی سره مخامـــخ‌کیږی که په غلطه لار تللی وی نو دده ګناه بیا خورا زیاته ده . په لنډو ټکو کی به دا ووایو لکه څنګه چی ادب تر هر څه لومړی‌دژوند هغه انعکاس دی چی دخبرو په ذریعه رامنځ ته کیږی اودادب‌پیژندلو دپاره دری شیان ۱ــژوند. ۲ــ ژبه ــ۳ــ دادب تیوری ضروردی.

داځکه چی ژوند دادب دپاره په‌مجموع کی خام مواد تیاروی ژبه دوسیلی په حیث په ادب کی په‌کاریږی دادب دتیوری په ژبـــه دژوندانه انعکاس ښکاره کوی اودټولنی نه بهر وجود نه لری .

داشان نقد هم په ټولنه کـــی‌منځ ته راځی او دټولنی ادبی او علمی اثار دمعقولیت او ارزښت له‌مخی تلی اود خپلی زمانی دټولو اقتصادی، اجتماعی سیاسی او ادبی‌ارزښتونو له مخی یی کره کوی ، دشملی پیړی نقادان نقد یوازی دقدرت دخاوندانو دپاره‌نه کوی‌بلکی دټولنی دپاره یی کوی داپیړی لکه‌څنګه چی دتخنیك علم اوجمهوری نظامونو دمنځ ته راتلو پیړی ده‌اوپه‌دی عصر کی پخوانی استبدادی

نظامونه له منځه تللي او ددیموـکراسی په اصولو ښکلی شوی دی. دارنګه یی نقادان هم ددیموکراسیپه لمن اود جمهوریت په پلوشو کی نقد داکثریت اود ټولنی دګټودپاره کوی نه دشخصی اود زور د خاوندانو دپاره .زموږ هیواد چیددیمو کراسی په لار یی قدمونه اوچت کړی دنورو اجتماعی موسسوسره په څنګ کی په ادبی اوهنری موسسی هم پیاوړی شی اود نقدهغه اصول چی په نړیه کی رواج لری ورته به خاصه پاملرنه وشی،باور لرو چی وروسته له دی به زموږ دټولنی ادب مترقی اودعصردپیښو منعکس کوونکی وی.

سر محقق محمد صدیق روهی

# کره کتنه

**راباندی گران هیوادمل صاحب!**

(کره کتنه) یوه داسی موضوع ده چی ځانګړی کتاب وربانده لیکل کیدای شی او په یوه لنډه اخباری مقاله کی دهغی دټولو خصو صیاتو څرګندونه ګرانه او مشکله خبره ده خو بیا هم زیار باسم چی دوعدی سره سم په ځینو عمومیاتو باندی وغږیږم .

**لغوی څیړنه :**

کره کتنی ته په عربی ژبه کی انتقاد وایی چی اصلی ریښه یی د (نقد) کلمه ده ځنی کسان دانتقاد پر ځای د(تنقید) لغت هم استعمالوی خو دغه ټکی په همدی ښه په عربی ژبه کی نه دی راغلی بلکه په قیاسی توګه د (نزاکت ،مغشش،قضاوت) اوداسی نورو کلیمو په شان جوړه شوی کلیمه ده .(انتقاد) کره کولو ته وایی .په انګریزی ورته (کریتیسیزم) وایی چی دلاتینی له (Kritikos) او یونانی (Criticus) څخه اخستل شوی او د قضاوت کولو په معنا راځی.

**تاریخی پس منظر**

داسی ښکاری چی دهر ادبی اثر په باره کی قضاوت دهماغه اثر له تخلیق سره سم منځ ته راځی.لیکن داد انتقاد لومړنی طبعی ،اوغیر شعوری بڼه ده همدا چی یو ادبی اثر زموږ پر احساساتو اغیزه کوی

په حقیقت کی زموږ انطباع دانتقادلومړنی مستتره بڼه څرګند وی.
په لرغونی یونان او همدارنګه دعربو دجاهلیت په دوره‌کی داشعارو نقدموجود وو،یونانی شاعر اوډرامه لیکونکی (اریستوفان) دناقد په نوم هم شهرت لری .ویل کیږی چی دعربو شاعر (نابغه) به په خیمه کی ناست و او شعرونه به یی کره‌کول .ډیر مهم لومړنی انتقادی اثر د (ارستو) یو کتاب دی چی Poetes

په نوم یادیږی .همدارنګه دیونانی (لانګینوس) اود لاتینی نقاد (هوریس) اثار هم مشهور دی .

په دری ژبه کی هم ددابی کره‌کتنی‌په باره‌کی ځای‌په ځای‌ځنی مثالونه لیدلی شو خود (المعجم فی معاپیر–اشعار العجم) کتاب په خاص ډول ادبی نقد ته وقف شوی‌دی .دمعانی‌بدیع بیان او عروض :کتابونو په ترخ کی البته داشعارو دښیګڼو ترڅنګه دهغو بد ګڼی هم بیان شوی دی چی داهم په واقعیت کی یوډول‌کره کتنه ګڼل کیږی .

داووه‌لسمی پیړی نه را په دی‌خوا کره کتنی دیوی جلا پوهنی‌په توګه وده کړی ده ،پرنسیپونه ،معیارونه او تاکتیکونه ورته وضع شوی دی او ډیری څانګی یی‌پیداکړی دی .

**انتقاد او تخلیق :**

ځینی کسان ادبیات پـه دووبرخو ویشی :

**۱ـ تخلیقی . ۲ـ انتقادی .**

دا ویش که څه هم درست دی‌خو باید ووایو چی ځینی انتقادی اثار دومره خوندور او ښکلی دی‌چی دتخلیقی عمده اثارو په کتـه کوری کی راتلی شی نو پـه دی‌ویش کی باید له پوره پاملرنی څخه کار واخلو او یو ډول یی هرومرو دبل ډول متضادونه ګڼو .

**دکره کتنی ډولونه :**

له اووه لسمی پیړی راهیسی‌دکـره کتنی کلمه دهغـوی اثارو پیژندنی ،تحلیل دفاع‌او ارځښودنی(ارزیابی) ته وقف شوی ده . د کره کتنی دویشنی په باب بایدوویل شی چی په دی برخه کی د نظریو والی نه لیدل کیږی اصل‌خبره دمعیار ده :
که یو ډول معیار استخدام شی‌نو یو رنګ تصنیف لاس ته راځی

گه له بل ډول معیار څخه کارواخستل شی نو بل ډول ویشنه منځ ته راځی ځنی کسان په خپله نقد په لاندی ډولو ویشی :

اعتقادی (دگماتیك)، علمی تاریخی، لغوی او ادبی نقد پر تقلیدی، پر اگماتیك معنا رسوونکی او افاقی باندی ویشل کیدای شی. یو بل تصنیف کره کتنه په (ارستویی) او (اپلاتونی) نقد باندی ویشی د (ارستویی) نقد څخه مراد منطقی قضایی او شعلی (یاصوری) نقددی په داسی حال کی چی (اپلاتونی) نقد زیاتره دهنر په باره کی اخلاقی او انتفاعی اړخونو ته توجه کوی. یو بل ډول تصنیف کره کتنه په نسبی او مطلق باندی ویشی دمطلق نقد طرفداران وایی چی کره کتنه ځنی ټاکلی پرنسیپونه او ځانگړی کړنلاره لری چی له هغو څخه تیری او عدول ته دی اجازه نه ورکوله کیږی، په داسی حال کی چی نسبی کره کتنه له مختلفو سیستمونوڅخه استفاده کوی،

همدارنگه کره کتنه په نظری او علمی برخو هم ویشل کیدای شی نظری نقد دهنر په باب عمومی پرنسیپونه اوایستیتیك فورمولونه وضع کوی او عملی یا تطبیقی نقدهماغه معیارونه اواصول پرمشخصو ادبی اثارو باندی تطبیقوی کیدای شی چی کره کتنه دهدف په اساس تصنیف کړو کره کتونکی بنایی یوادبی اثر له دی لاندی اړخونو څخه وگوری :

۱ـ ددی دپاره چی دیوه اثر اساسی پرنسیپونه را برسیره او توضیح شی .

۲ـ ددی دپاره چی له تخیلی هنرڅخه دفاع وشی .

۳ـ ددی دپاره چی لیکوالو ته اصول وروښیی اود لوستونکو ذوق وروزی .

٤ـ ددی دپاره چی مبتدی کسانو او عوامو ته دیوه اثر ارزښتناکه اړخونه څرگند کړی او داسی نور.

**دتصنیف یو بل ډول دادی :**

۱ـ امپریسیو نیستیك (انطباعی) چی پر نقاد باندی دیوه اثر اغیزه څیړی .

۲ـ تاریخی چی دیوه اثر چاپیریال او پس منظر مطالعه کوی .

۳ـ متنی چی دعلمی وسایلو په کارولو له لاری هڅه کوی چی اصلی نتیجه یا متن بیر ته جوړ کړی .

٤ـ صوری چی یو اثر دنوعیت‌او ژانر له مخی تر څیړنی لاندی نیسی .
٥ـ قضایی چی پر یـوه اثر دټاکلو معیارونو په اساس قضاوت کوی .
٦ـ تحلیلی چی‌داجرا او دمطالعی‌له لاری دیوه ادبی اثر هویـت معلوموی .
٧ـ اخلاقی چی دیوه اثر ارزښت‌دبشری ژوند په ارتباط مطالعـه کوی .
٨ـ افسانوی چی یو اثر اصلی‌نمونو سره پرتله کوی .

لکه چی مخکی می وویل ددی‌ټولو ډولو مفصله تشریح دلته نه ځایږی داځو کرښی یوی اکتشافـی‌څیړنی ته ورته دی چی ځنی یی (پیلوټ وزمه څیړنه) بولی .ښایی‌لوستونکی پوښتنه وکړی چی ددی ټولو تاریخی څیړونو اوتصنیفونـوسره سره دکره کتنی له تعریـف څخه ډډه شوی ده موږ کولی شوچی‌کره کتنه په ساده الفاظوتعریف کړو .خو ښایی ځینی وچ تعریفونه لوستونکی دهغو ښکلا وو سره له اشنا کیدو څخه بی برخی کړی چی‌په مفصله تشریح کی پرتی وی کره کتنه کله کله دنیمګړ تیاوودپلټلو په مفهوم استعمال شوی‌ده. خو بل وخت دښکلا دپیژندنی دپاره‌ورڅخه کار اخستـل شـوی دی .

**(ویکتور هوګو) وایی :**

«دا اثر ښه دی که بد ؟ همدادکره کتنی قلمرو دی» البته دلته دانه څرګندیږی چی د «ښه» او«بد» معیارونه کوم دی.ایا دلیکوالو په نظر کی اخلاقی معیارونه مهم‌دی که ایستیتیك یا کوم بل ډول

**ریچارډز وایی :**

«نقاد دارزښتونو قاضی دی..»

**«سپنګرن» داسی پوښتنی طرح‌کوی:**

(١) هنرمند دڅه شی دڅرګندولودپاره زیاړ **ایستلی دی** .
٢ـ (ایا هغه څه یی چی ویلی‌دی په ویلو ارزی ؟ )

---

ماجذونه
په دی مقاله کی له دی‌کتا څخه زیاته استفاده شوی ده :
1. Shipley (ed) Dictionary of world literature.
2. Thrall, etal, A Hand book to literature .

س . ش

# دعملي نقديو ټکي

«خبره دومره نه وه خوما هسي‌اوږدوله»

دحق الزحمي له شامته په اوسنيواخباري ليکنو کي بي ضرور تـه اوږدوالي راغلي دي .مثلاً ددي په ځاي چي وليکي .

«بي له زياره هدف ته درسيدوبله لار نه شته» ليکي «هيڅوك بي له زيار او زحمت څخه دمقصداو هدف پړاو ته رسيدلي نه شي»

دلته په دواړو جملو کي هماغه يو پيغام دی نو دليك داوږدولـو مقصد هماغه دحق الزحمي زياتوالي‌اود کاغذ ډکول دي .

لوړي پشنهاد .راځي‌چي په لنډوجملو ځانونه روږدي‌کړو .ددي‌عادت يوه بله ښيګڼه داده چي دليـك‌اغيزه به مو هم ډيره شي .په لږو الفاظو يومطلب افاده کول دليکوالي‌اوهم دخطابي لوی کمال دی کـه پورتني پيشنهاد مني نوراځي کوزني‌ليکنه چي دمرکز له يوی ورځپاڼي نقل شوی اصلاح کړو .

«هر وطنپال اود وطن په لوړتيامينو ځوانانو ، منورينو ، روشـن فکرانو او بالاخره دټولني ټولـــوطبقاتوته ښايي په پوره شوق ، ذوق ،مينه او علاقه دملي روحي‌په لرلو سره دقرباني، سرښندني او فداکاري له مخي خپل وجائيب‌اووظايف په پوره ايمانداري سر ته

ورسوی او په دغه حساسه مرحله کی چی نن زموږ افغانی ټولنه له هغه څخه په بریالی توګه تیریږی.خپله میړانه ،توره ،همت ،شجاعت زړورتیا ،شهامت او مناعت ثابت کاندی»

دلومړی خاکی په توګه به داسی‌عملیه پری جاری کړو :له «وطنپال» څخه نیولی تر روشن فکـرانو اوبالاخره ټولنی» پوری زائید دی ځکه په را وروسته فقره «ټولو طبقاتوته ښایی» کی طبعاً هغه نوری چی لومړی یاد شوی راڅی دطبقاتو ذکرهم زائید دی او په (ټولو) کی‌راڅی نو به جمله داسی شروع شـــی.«ټولو ته ښایی» د «شوق» ذوق ، مینه ،علاقه» له مترا دفاتو څخه‌راڅی چی یو واخلو مثلاً «مینه» چی برسیره په نورو فضائلو پښتو هم‌ده .او له «قربانی ، سرښند نی اوفدا کاری» څخه به هم منځنی‌انتخاب کړو نو به داسی شی :

په پوره مینه دملی روحیی په‌لرلو سره دسر ښندنی له «وظایف او وجایب» څخه چی که څه هم یوڅه معنوی توپیر سره لری وظایف انتخاب کړو ځکه چی لږ څه صراحت‌ولری .«په پوره ایمانداری» تقریباً مکرره یادونه ده ځکه پخوا تر دی‌دپوره‌مینی سرښندنی اوملی روحی توصیی راغلی دی نو به داسی شی«وظایف سرته ورسوی او په دغه حساسه مرحله کی چی ( «نن» او«زموږ» او «په» «توګه» او «افغانی هم زائد دی » ) ټولنه له هغــه‌څخه بریالی تیریږی خپله میړانه ،توره ،همت شجاعت ، زړورتیا ،شهامت او مناعت دومره سره نژدی دی چی په زغرده یوپه بل بدلیدلی‌شی نو به د «میړانه» په اخستلو بسیا شو «میړانه ثابت کاندی» ټوله‌جمله به داسی شی .

ښایی چی په پوره مینه دملی‌روحیی په لرلو سره دسرښندنی له مخی خپل وظایف سر ته ورسوی‌او په دغه حساسه مرحله کی چی ټولنه له هغه څخه بریالی تیریږی‌خپله میړانه ثابته کاندی .

کیدای شی چی لوستو نکی به‌پاسنی لیکنه نوره هم چاڼ کړی او یوی کرښی ته به یی را ورسوی.

س . ش

# کره کتنه

**پاس هندوکش دی کوز اباسین دی.**
**زا په مینه کی زړګی خوړین دی .**

ملگری : ځنی مشخص شیان دی‌چی دیوه کلتور ټول غړی وربا ندی پیژندل کیږی دپښتو په کلتور کی‌همداسی شیان شته چی هر پښتون دژوندانه په یوه یا بل وخت کی‌په هغی لاس پوری کړی وی ځینی اعمال دومره کلتور ته سکنی وی چی پردیو ته یی حال نه شی ویلای چی موږ به یی هم نه یادوو . ځنی دعمـــر دمشخصی پوړی سره مله وی اوچی عمر زیات شی هغه هم هیر شی اوځنی دژوند تر پایه پاتی شی .

یوه خاصه چی په پښتو کی ډیره بارزه ده داده چی دوی چی محض سواد پیدا کړی نو دنظم په لیکلـو پیل کوی زما دشخصی پلټون له‌مخی داسی پښتانه چی لیك یی زده وی‌اونظم‌یی نه‌وی لیکلی کم‌دی ، اکثر چی اوس نظم لیکی په لومړیو وختو کی یی کابل مجله ،زیری او نـورو پښتو خپرونو کی په خپل فکر (پاخه شعرونه چاپیدل) یا یی دښونځیو په

کنفرانسو کی خپل شعرونه لوستل نهایی دنظم او قافی سره مینه دټولو بیرته پاتی اوکلیوالی کلتور خاصه وی او یا به دپښتو ژبه داسی روغه وی چی په اسانه نظم به په کښی ویل کیدای شی او دپردیو دا ټوکه به درسته وی چی وایی «په پښتو ژبه یو کرښه ولیکی او بیا یی منځ په پنسل پاك وتوری پښتو شعرتری جوړیږی»

هر شی چی ډیر شی گنډیر شی دنظم او ناظمی خبره پښتو کی اوس دومره دبیخوندی مرحلی ته رسیدلی چی زه شخصاً هڅو هیڅ نظم نه لولم.
ما دملگری خبره هم دلته غوشه کړه او ورته ومی ویل چی تر دی ځایه خبره درسته ښکاریده خواوس چی ټول شعرونه محکوموی نو زه در سره موافق نه یم .

ملگری : زه شعر نه محکوموم شعر په پښتو کی ډیر لږ دی .
زه :ته رحمن ، خوشحال ،الفت،اجمل اوذغسی نور په شاعرانو کی نه شمیری ؟ ؟

ملگری :زما استدلال مه کړ وه تاتا دخلورو شاعرانو نومونه یاد کړی او زه به دخلورو سوو ناظمانو اثاردروښیم چی ځانونه دهمدغو شاعرانو شاگردان بولی .خو چټیات یی ویلی دی .درحمن بابا ټولی هغه مشاعری ولوله چی هر کال یی دده په یاددلته اوپه کوزه پښتونخوا کی شوی دی، ټول چټیات دی .دنوی کال ،نارنج دگلو ،دخوشحال دیادونی دپښتونستان او داسی نوری ټولی مشاعری بس په هماغو زړونو یوشخوند دی .
زه : نقد داسی نه کیږی چی سړی له یوی مخی ټول شعرونه محکوم کړی نقد دهر سړی په تحلیل ولاړ دی داچی ته وایی دی ته ورته دی لکه چی څوك ووایی دده سبز خټکی بی خونده دی .

ملگری : عجب مثال دی په لاس راکړ که معیار اسقلانی خټکی وی نو دده سبز ټول خټکی بی خونده دی په دی بی خونده پالیز کی یو نیم داسی خټکی هم شته چی که سړی په گرمی کی له کابله پلی راغلی او ډیر تږی وی نو چاره وربانده ی کیږی .خو دادفع الوقت بیا هم په قضاوت کی چی اسقلانی خټکی په معیار دده سبز ټول خټکی بی خونده دی څه بدلون نه راولی .
زه : ته له شعر څخه څه غواړی.

ملګری : بس هماغه شی چی له ختیتی غواړم .خوږوالی ،تازه والی چی لکه تانده لښته ماته شبی‌او ښیراز توب چی څیری یی کړی لکه دسهار ګلاب پرخی وربانديرنی ځلیږی .

زه : دده سبز ختیکی څنګه دی ؟

ملګری : زیړ رنګ لکه نری رنځ وهلی ،خوږین او اوبلن ،پیکه جنجړاو چی کتره یی خولی ته واچوی لکه‌په زړه کلوشه چی شخوند ووهی دراېږ په شانی غزیږی .

زه :داتشبیه ډیره اوږده شوه‌اوس یی لطفاً ترجمه کړه .

ملګری :اوسنی پښتو نظمونو ته شعرونه نه شو ویلای .دا نظمونه نه تخیل لری نه باریکی نه تازګی‌خیالونه یی زاړه او موضوعات یی زاړه دی ترکیبونه یی هماغه خوسا،،مبتذل او بیخونده ترکیبو نه دی . ډیره ساده تبلیغاتی لهجه یی ده اوږدی منظومی نصیحتنامی ته‌ډیرورته دی ،لافی شافی ډیری لری دپلانکی‌زوی یم دپلانکی لمسی یم داسی جګ یم لکه هندوکش ،داسی څپانده یم‌لکه اباسین ،ښه ښه دی بد بد دی دظالم کاسه نسکوره ده ،مظلوم بی‌وزلی دی ، دملك خیته دبزګر په وینو پړسیدلی ده اوس هغه دوره‌تیره ده ملك ودان دی ،اختلافات‌رفع دی ،ټول اولس متحد دی ،ځو نه دریږو پر مخ ځو ، کار وکړی ملك اباد کړی .

زه :داخو درستی خبری دی انتقادانتقاد په څه دی .

ملګری : درستی به وی که نه‌خو بدیهیات او ساده خبری دی او بده خویی لاداچی داناظمان به‌همدغه سادګی وایی .

زه : مثال را کړه .

ملګری : دومره ډیر دی چی نه‌پوهیږم کوم یو در کړم که یو در کړم راځه ددغی مجلی پاڼی به ترهغی راوړو چی په هر پښتو نظمم برابر شو بس هماغه مثال دی .یو،دوه . . . . دغه دی دمور په باب دا شعر دی .

**ته دپامیر او هندوکش اود باباموری**

**ای دخاورواود باختـــر او آریانا مـــور یی**

ستا برکت دی چی روښانه لروبرښکاری .

ستا دبچوسره دپوهی لوی دفتر ښکاری .

دانظم بی له دی چی یولږ مشهورغرو نه او ښارونه یی یاد کړی دی نور هیڅ نه لری او که لری بابیزه‌شان دی .غر او ښار خو مور نه لری او دریم بند یی محض احسا ساتی‌خبری دی که نه موږ ټول پوهیږو چی‌زموږ ملك‌په پرمخ تلونکو هیوادوکی دپرمخ تللو په حال کی دی .

# اقتراح

پښتو نوی اصطلاحات اولغات باید څنګه، څه ډول دچاله خوا په کومو شرایطو وضع اوبه څه شکل عام‌شی؟

زیری دغه موضوع داقتراح په ډول طرح کوی، او له ټولو ښاغلو باصلاحیته کسانو نه هیله اری، چی په دی اقتراح کی برخه واخلی او خپل نظریات مونږ ته راواستوی .

سر محقق روهي

# نوی لغتونه او اصطلاحات

دزيري مسؤول چلوويکي ښاغلی هیوادمل !

تاسی له مانه غوښتنه وکړه چی دنويو لغتونو او اصطلاحاتو په باب د (زيري) په اقتراح کی برخه واخلم. لومړی باید ووایم چی زه په دی باره کی دوه ډوله موقفونه لرم :

يو دپښتو ټولنی دريس په توګه، بل ديوه ليکوال په توګه چی ځانته مستقلی نظريی لری. دپښتو ټولنی دریس په توګه زما موقف دادی چی زه اکاډميك مسايل همیشه دپوهانو دمشوری او پريکړی له مخی عملی کوم. کله چی مساله ډيره وړه وی نو دپښتو ټولنی دمسلکی غونډی له خوا تر بحث لاندی نیول کیږی او که مسأله غټه وی دپوهنتون استادانو، دنورو علمی موسسونمایندګان او انفرادی ليکوالو ته هم بلنه ورکول کیږی چی پر مسأله باندی بحث وکړی. دمثال په توګه، دپښتو ژبی دپاره دفونیمیك الفبیوضع کولو موضوع اودځينو کليمو دليك دود ديو والی مسأله اودپښتودپراختيا لاری چاری اوداسی نوری موضوعګانی دپوهانودغونډو له لاری حل شوی دی، په داسی غونډو کـــی

همیشه دموکراتیك پرنسیپونــــه مراعات‌شوی‌دی .دلغتونواواصطلاحاتو دوضع کولو دپاره هم یو کمیسون‌ټاکل شوی چی داصولی مراحلوله طی کولو وروسته به ډیر ژر په‌کار پیل وکړی .

ماپه دغو غونډوکی دیو غړی په‌توګه برخه اخستی ده .اوخپل نظر می ویلی دی چی‌البته کله به منل‌شوی وی‌او کله به نه وی تائید شوی .

را غلم دی خبری ته‌چی دیوه‌لیکوال‌په حیث زمانظر باید دپښتو ټولنی موقف ونه ګڼل‌شی. کوم نظرچی‌دلته یی وړاندی کوم زماشخصی نظر دی .هرڅوك کولی‌شی چی‌ویی‌منی اویایی‌ردکړی .

زه فکر کوم چی دنویو لغتونو اواصلاحاتو دوضع کولو موضوع زیاتـــره فلسفی بڼه لری اود هرشخص لـــه‌عندی تمایلاتو اوتلقیاتو سره‌اړه‌لری په داسی مواردوکی‌د ( صحیح ) او(غلط)سوال نه‌طرح‌کیږی ځینی‌کسان زیار باسی چی‌ژبه په افراطی ډول‌تصفیه کړی‌اوټولی‌دخیلی اومستعاری کلیمی له‌ژبی څخه وباسی. ځنی نورداعتدال لاربهتره ګڼی او وایی چی په تدریجی ،نامحسوس مګرپه شعوری‌ډول دی‌ژبه دسو چه توب خواته پرمخ ولا ړه شی .

دریمه ډله دهر ډول مداخلی اولاس وهنی سره‌مخالفت کوی‌او وایی چی ژبه‌خپل سراوطبعی جریان ته‌پریږدی‌اوله تحمیلی‌او تصنعی جریانا توڅخه یی وژغوری .

داهره نظریه پلویان لری لیکن‌اصلی خبره داده چی موږ‌پد هیڅ‌یوه نظریه باندی‌د (علمی) او (غیرعلمی)ټاپه نه شو لګولی. دانظر یی‌تحلیلی یاترکیبی نه‌دی چی‌دعلمی منطق اوتجربی په‌محك‌یی وازمویو او(غلط) یا (صحیح) ورته ولیکو . دانظریی‌توصیوی دی .ددوی په مورد کی یوازی د(مصلحت) او (ترجیح) لـــه‌حیثه خبری کولی شو .یاپه بله‌ژبه باید وګورو چی کومه بڼه یی دځینو معیارونو په اساس ،زیاتــه ګټه او ارزښت لری .زه په خپله‌دافراطی تصفیی طرفدار نه یم افراطی تصفیه ژبه له خپل هدف څخه لری‌کوی .ژبه دپوهولو راپوهولووسیله ده .کله چی ژبه دافراطی تصفیی‌په ذریعه له خلکو څخه تجرید شی او داولس ترمنځ مفاهمه له مشکلاتواسره مخامخ شی .په حقیقت کی‌ژبه له خپل اصلی هدف څخه لری شوی‌ده .

دا دخلکو خدمت نه دی چی څوك‌درادیو ،ورځپاڼو،مجلواو تعلیمیافته کسانو په خبرو نه پوهیږی . عام‌خلك باید دژبی قربانی نه شـــی بلکه ژبه باید خلکو ته وقف شی‌او ددوی په ګټه استعمال شی .

له بلی خوا که دژبو تکاملی‌سیرته وګورو په نړی کی خالصی ژبی نه شته او که وی هغه به دځینوبد وی ټولنو ژبی وی چی له نوری نړی سره علمی او ثقافتی اړیکـــی‌نه لری .دژبی سوچه توب دیوی ژبی دمترقی توب نښه نه ده . دمثال په توګه ،(پښتو قاموس) چی ډیر کلونه مخکی دپښتو ټولنی له‌خوا په خالصه ژبه (؟) چاپ شوی دی دپښتنو دژوند عصری حالت نه‌شی څرګندولی . له بده مرغه په دی قاموس کی دماشین ،موټر ،رادیو،سینما ،تیلفون غوندی په زرګونو کلیمی نه شته ،علمی اصطلاحات‌په‌کی نه دی راغلی ،ته به وایی چی دا قاموس په منځنیو پیړیو کی‌لیکل‌شوی دی .زه دقاموس لیکوونکو کار ته په عمومی ډول دقدر په سترګه‌ګورم مګر له دی سره موافق نه یم چی هرو مرو دی خالص سوچه‌پښتولغات په کی راشی .زما په عقیده ،هغه کلیمی چی پښتانه یی پـــه‌ورځنی ژوند کی استعمالوی دپښتو ژبی شتمنی بلله کیږی دخارجـــی‌کلیمو تصفیه زما په عقیده داسی معنا لری‌لکه موږچی دخارجی‌تولیداتواو مصنوعاتو له استعمال څخه په دی دلیل چی له بل ځایه راغلی دی‌ډډه وکړو .څه خارجی موټر څه د موټر خارجی کلیمه ،فرق یی څـــه‌شی دی .

زه ددی سره کاملاً موافق یم چی‌دیوی ستراتیژی په اساس موږ د ژوند په هره ساحه کی په خپلوپښو ودریږو .لیکن دی مقصد تـــه رسیدل مختلفی مرحلی لری او بی‌زینی بام ته ختل له امکان څخه یو څه لیری بریښی .

زما په نظر دکلیمو بحث ډیـــرابتدایی بحث‌دی .داد ډیری‌خوشحالی خبره ده چی موږ خپل قیمتی وخت‌بیاهم په الفاظو صرف کړو .له بـــده مرغه دلته تر ټولو اسانه اختراع‌داده چی کلیمه اختراع کړو .بهتره به داوی چی مفکوره اختراع کړو .په جمله باندی فکر متمرکز کړو‌نه په مجرد لفظ باندی .

دپورتنیو خبرو څخه به ښایـــی‌ځنی لوستونکی دی‌نتیجی ته‌رسیدلی وی چی ګویازه دکلیماتو په مقابل‌کی بیخی بی تفاوته یم.په دی‌باره

کی زه داروانښاد الفت فرمول غوره ګڼم. دمرحوم الفت صاحب په نظریه که چیری دوی عام فهمه کلیمی په محیط کی استعمالیږی چی یوه پښتو او بله یی دبلی ژبی وی لیکوال دی زیار وباسی چی پښتو کلیمه استعمال کړی .

کوم شی چی زه یی په دی خبرو ورزیاتوم هغه دا که یوه فصیحه کلیمه چی په بین الیللی سویه استعمالیږی او یوه علمی اصطلاح چی په مهمو ژبو کی عامه شوی وی.زموږ ژبی ته په طبیعی شکل لاره پیداکړی حتمی نه ده چی له ژبی یی وشړو او په ځای یی بله کلیمه اختراع کړو .

داوه زما شخصی نظریه چی په لنډ ډول ولیکل شوه . باور لرم چی ځنی کسان به بل ډول نظریی لری.دزیری له اداری څخه غوښتنه کوم چی ټولو نظریو ته دی دخپرولــــوموقع ورکړی لیکن چاته دی اجازه نه ورکوی چی دبل لیکوال نوم واخلی او مخامخ انتقاد پری وکړی .که دا کار وشی نتیجه به یی دهیچا په ګټه نه وی .

## په درناوی

سر محقق دوست شینواری

# نوی نوم او نوی اصطلاح

دبشری ټولنو ژبی لکه خپلی ټولنی همیشه له تحولاتو سره مخامخ وی دژبو ډیر نکه او خالص لغات کله داسی له منځه ځی چی دهغه مسمی او هغه شیز هم نه پاتی کیږی چی دافادی له پاره یی دغه لغت وضع شوی وی . په بله ژبه نوم او نومولی (اسم او مسمی) دواړه له منځه ځی. چی دژبپوهنی په اصطلاح ورتـــه (هیستو ریزم) ویل کیږی او کله داسی له منځه ځی چی نومولـــی (مسمی) داستعمال له ساحی څخـه نه وی وتلی خو نوم یی دعام اولس په محاوره کی له منځـه تللی او ځای یی بل نوم نیولی دی چی دی ته (ارخاییزم) ویل کیږی .

دلغاتو دمړینی په څنګ کـی دبشری اقتصاد ،تخنیك او کلتور د پراختیا سره وخت په وخت نـوی شیان او نوی مفاهم پیدا کیږی چی دهغوی دافادی له پاره نویو افاده کوونکو لغاتو او نوموته اړتیا پیدا کیږی .او ددغه ضرورت له املـه نوی نومونه ورته وضع کیږی مثلا دوخت په ایجاب دلوړو تحصیلاتـو مـوسسه منځ ته راځی اود هغـه لـــه پاره نـوی نامه (پوهنتـــون) ته ضرورت احساسیږی دهمد غـه نوی نوم موضوع دزیری داقتراح اوزموږ دبحث مورد ده .

زما په خیال دنویو نومونو په باب ښه داده چی دنومولی یعنی مفهوم او مسمی دمنع په باب فکر وشی او په همدغه لحاظ په دوو برخو وویشل شی :

۱ـ هغه چی منبع یی زموږ خپله ټولنه وی لکه پوهنتون ،ښوونځــی ځارنوالی .

۲ـ هغه چی له نامه سره له بهره راځی لکه موټر ،ماشین ،رادیو، تلویزیون .

دلومړی ډلی مفاهیمو له پاره البته باید دنومولی (مسمی) سره یو ځای نوم (اسم) راشی ځکه که یو ځــل داولس په خوله کی په بل نامطلوب نامه مروج شی بیایی په مطلوب نامه اړول ډیر سخت کار دی .دلومــړی گروپ مفاهیمو له پاره دنامه وضع کول چی هغه ته (نیولو گیزم) ویل کیږی ښه کار دی .مگر په هرصورت چی وی زموږ په ټولنه کی دا کار دیوه فرد صلاحیت نه دی بلکه دادپښتو ټولنی صلاحیت دی چی دوظایفو په جمله کی شامل دی .که دا کاردافرادو خپل سری ته پریښودل شی دابه لویه اشتباه وی ځکه چی .

۱ـ ژبه چی دټول ملت مال دی دافرادو له خوا به په خپل سر او خپل ذوق گډه وډه شی .

۲ـ دیوه فرد له توانه وتلی ده چی یو نوم یا اصطلاح په ټول ولس ومنلی شی .

۳ـ دفرد تعرف امکان نه لری چی له معنوی غلطیو او تیروتنو څخــه خالی وی په دی باب موږ مثلاً یوه کلمه (گرځدود) د(لهجی ،دیا لیکت) له پاره فرضوو چی که دکوم فردله خوا وضع شی نو دا به معکوسه معنا ورکړی .ځکه : (گړ ـگړیدل خبره کول) او (دود =مروج ـعــام شوی) معنا لری .د (گرځدود) معنا داده (عام شوی ،مروج شوی لغت یادویی) حال داچی (لهجوی) او (دیالیکتیك) لغات داولس دیوی خاصی سیمــی پوری محدود وی اود هغوی په مفهوم د(دود ،رواج ،عمومیت) مفهوم هیڅکله نه ځاییږی نو ددغه مفهوم له پاره دغه اصطلاح څومره لویه معنو ی تیروتنه ده .

٤ـ ډیر ځله لیدل کیږی چی دافرادو له خوا دنومونو په وضع کولو کی دژبی له نورمونو او گرامری اصولو څخه تیری او غلطــی لیــدل

کیږی چی دژبی له چوکاټه بیخی وځی .دلته هم زه دیوی کلمی مثال راوړم .په ځینو لیکنو کی (اخځ) د(ماخذ) په معنا استعما لیږی چی دغه استعمال دپښتو له گرامری چوکاټه بیخی وتلی دی .چی داد (اخستل ـ اخلل) له فعله جوړه شوی کلیمه ده او په هر صورت سمه نه ده ددغسی نومونو په خپل سر وضـع کول بیخی سم کار نه دی .کوم فرد که خیال کوی چی زه ژبی ته له دی لاری خدمت کوم په حقیقت کی اولس دمال (ژبی) بنسټونه پریکوی.

داد پښتو ټولنی او نورو باصلاحیته مقاماتو وظیفه ده چی ددغه شعوری یا لاشعوری تخریب مخه ونیسی .دویمه ډله نومونه چی منبع یی زموږ له هیواده بهر وی او موږ ته دفن علم اقتصاد ،کلتور دپراختیا ،تخنیك او نورو له لاری راځی لکه ریالیزم میکروب ، بیلانس بانك ،ماکسیشروب، راډیو ،تلویزیون او نور البته که په بین المللی ژبو کی داستعمال یو شان مورد ولری زما په خیال دهغوی نوم بداولو او نوی نوم ایښودلو ته ضرورت نه شته .په هغو اولسونو کی چی حتی د(ژبی دتصفیی) افراطی طرفدار دی دغسی نومونه نه بدلوی البته ځینی خارجی نومونه که دتلفظ له مخی دراندہ وی لکه (یونیورستی) نو بدلول یی ښه کار دی او که نه نو زما نظر دادی چی بین المللی نومونه په خپل حالت پریښـود ل شی .البته په داسی موادو کی په اصطلاح د (ژبی ،دتصفیی) سوال لوړ ځای اری چی دهغـی څیـړل بیله موضوع ده او دلته یی څیړل بـی ځور ده دی دادی په دی باب زما دنظر بیخی لنډیز .

بریښ

# په پښتو کی نوی نومونی

ښاغلی دزیری دجریدی مسؤول مدیر!

«ادبی نقد» تر اقتراح وروسته دادی یو ځل بیا دی یوه ښــه اود پښتو له پاره حیاتی موضوع اقتراح ته وړاندی کړه زه له دی موضوع سره دزیاتی مینی درلودلو له کبله نشم کولای چی پټه خوله پاتی شم او څه ونه وایم .

په پښتو کی د «نومونو» او «نوم ایښودنــو» موضو ع «نــوی» او «استثنایی» نه ده دپیړیو په یوړیوداکار شوی او هم دنړی دزیاتو ژبو له پاره نومونی اونوم ایښودنی شوی دی .موږ وینو چی زموږ ژبه «لاس کتویه» نه ده اود نورو ژبوتیارو لغتوته یی کچکول نه دی نیولی بلکه ددی متره یی درلودلی چی هر وخت داقتصادی ،اجتماعی، اودینی زړو ورکړو له لاری له نوروژبو نه کوم نومونه ورته راغلی ډیر ژر یی په پښتو کی «اندولونه»ورته پیدا شوی اود نورو ژبــو لغتونه یی نه دی منلی دنمونــی په توګه کله چی داسلام سپیڅلی دین دپښتو سیمی ته راغی ،پښتنوپه مینه داسلام مقدس دین ومانه خو له دین سره راغلی نومونه یی په پښتو واړول اود «خطیب» «منبر»

«صلوة» او نورو په خـــــای یی«ستایوال» «دریځ» «لمونځ» او نور دود کړل او گوری په پټه خزانهاکی لرغونی پاړکی داژبنی متره‌دومره پیاوړی وه چی اتمی هجری پیړی‌پوری زموږ ژبه «سوچه» پاتی‌شوه سره له دی چی «مجرده» نه وه اوله گاونډیو ملتونو سره یی زیاتی کلتوری ،اجتماعی او اقتصادی‌راشی‌درشی درلودی دروښانیانو اوختکو دادبی فعالیتونو په‌وخت کی (لسمه،یولسمه ،دولسمه پیړی) کی هم داحرکت ونه درید .

دروښانیانو په اثارو کی ډیـرعربی لغات مفغن شول او خوشال خان ختك او زامنویی ډیر نـــوی‌نومونه په پښتو کی کیښودل چی په بیلگه کی یی دخوشحال خان‌ختك له خوا دلمریز کال برجونه پښتو نومونه یاد ولای شو .تردی‌را وروسته هم داکار په لوی‌لاس شوی چی دامیر شیر علیخان دوخت‌نومونی او داعلیحضرت غازی امان‌ـ الله خان په وخت کی دپښتومتری‌نومونی دهیرولو نه دی .زه دپښتو نومونه دتاریخی شیړلو شخه تیرپړم‌یوازی ددی نومونو په ضرورت شه وایم .

دساینس اوتخنیك په‌دی گړندی‌نړی کی یو هیواد له ستنی نه بیا تر لویی فابریکی پوری له نوروهیوادو شخه راوړی له دی توڵـو لویو او وړو ماشینو او پرزو سره‌یی نومونه هم راځی نو که داهیواد هر څو تاریخی او لرغونی ژبه ولری‌ډیر ژربه دربط تر تورو پرته بل هیڅ‌هم ورته پاتی نه‌شی اوژوندی‌ژبه به یی دپردیو ژبو په‌موزیم بدله شی نو له دی کبله زه په‌زیات جرات په پښتو کی «نومونی» تائیدوم او داکار له خپلی ژبی‌سره دمینی نه بلکه خوا خوږی بولم. که موږ دوخت له جریان سره خپله ژبه عیاره نه کړو نو زموږ ژبه به دمرگ دکندی لورته ورلنډیږی‌ددی ضرورت تر تائید وروسته اوس داپوښتنه پاتی کیږی چی دنوم ایښودنی کار دی ډله ایز وی که انفرادی ؟زه په دی برخه کی‌هم زیات تشویش نه لرم که یو نوی نوم یوه ډله کیږدی یا یوفرد،پروایی نه‌شته خونوم ایښودنه باید منلی معیارونه ولری او تر«تعمیم» وړاندی باید دژبپوهانو او متخصیصینو له خوا منل شـــوی‌او دودیدل یی تائید شوی وی .

په دی برخه کی «افراطی» او«تفریطی» دواړه حرکتونه مضر دی

،دافراطی تر څنګ مې تقریظي څکه وویل چې یو بل ډول (منفي نوموني) هم رواني دي چې باید سترګې پرې پټې نه شي دا منفي نوموني زموږ دژبې بنسټ او تاداو ورانوي اوزموږ ژبه دنوورو ژبو دمحاورو او اصطلاحاتو په رنګ رنګوي .زموږځینې بې تجربې ژباړونکي د «باد-وزیدن» جمله د «باد لګیدل» په ځای په «باد الوتل» د «خواب پریدن» جمله د «خوب تښتیدل» په ځای په «خوب الوتل» د «نهال شاني» جمله د «نیال اېښودل» په ځای په «نیال کینول» او نورو اړوی چې په ظاهر کې یوه پښتو جمله ده خو په حقیقت کې دپښتو اراوسته پرې وران شوی دی .

همدا راز یو بل منفي حرکت هم په پښتو کې ددود او مستعملو جملو او کلیمو په مقابل کې روان دی .مثلاً «محاوره» او «اصطلاح» د عربي دوه همغه لغتونه دي چې په پښتو کې دود دي او هر څوک پرې پوهیږي په دې وختو کې ددې دواړو نومو په ځای «پښتو ګړنې» هم عام شوي خو ځینې کسان ددې له پاره چې خپل «علمیت» او په نورو ژبو کې دخپلو «معلوماتو ساحه» وښيي نو په لوی لاس «اصطلاح» «محاوره» او «ګړنې» درې واړه پریږدي اوپه ځای د «فراز یالوجیکي - واحد» یا «پښتو ایډیمونه» اوږده او نامانوس ترکیبونه را اخلي چې داهم ژبه له خپلي «کلانکارۍ» نه قربانول دي .

په هر حال پښتو نومونو ته بیرته راګرځو دنموني په ډول که موږ د «الوتکې» «اوبتل» او نور خواږه نومونه پخوانـــه وای اېښي اوس مجبور وو چې انګلیســــي یا عربي او یا نور نومونه ورته واخلو او په یوه نا مفهوم نامه یې خلکو ته وروپیژنو سره له دې چې «الوتکې» او «اوبتل» له نامه سره خلك دساینس ددې نویو سوغاتونو پــه خصوصیت هم پوهیدای شي نو که موږ دنویو شیزونو له راتللو سره په دې شیزونو باندې وړ نومونه کیږدو نه به مو ژبه له ودې لویږي او نه به دخلکو په خولو کې دپردیو ژبو نا مفهوم نومونه دتوتي غوندې واردیږي .دنموني په توګه تر اوسه چې تلویزون زموږ پــه هیواد کې نه دی عام شوی نو که رسماً د «لروینون» نوم پر کیږدو او دانوي اداره له لومړۍ ورځې نــه دا نوم ځان ته واخلي هم به یې

خلك ډير ژر ومنی او هم به د«لروينون» له نامه دتلويزيون په خصوصيت پوه شی .

په دی اساس نوی نومونه اولغتونه جوړول دژبی يو عصری ضرورت دی او ددی کار له پاره‌يو منظم پروگرام جوړول په کار دی ددی کار په کيدلو سره به‌هم‌دځانګړو نظريو مخه ونيوله شی او هم به ژبه له ودی اوپرمختګ‌څخه نه لويږی .

سر محقق معتمد .

# نوی اصطلاحات او لغتونه

دزیری جریدی دجمهوری دولت دپالیسی سره سم دپښتو ژبی پراختیا ته تل خدمت کړی دی او کوی یی،دژبی دانکشاف او ترویج دپاره یی پوره هلی ځلی کړی دی .او خدمت یی ځای هم نیولی دی .په دی وختونو کی دا جریده ګړندی ګامونه اخلی او ګټور موضوعات اود لوستلو وړ مواد وړاندی کوی اود خلکو علاقه ورسره زیاته شوی ده .دجریـدی لیکوالان زیاتره هغه ذوات دی چی دلیکوالی سابقه لری او مشهور او ستر لیکوالان دی .داوضعیت موږ ته داډ راکوی چی جریده به نوره هم قوی او خدمت ته به ښه مساعده شی .دنورو موضوعاتو په جمله کی یی دادی دنوو لغتونو موضوع داقتراح په ډول وړاندی کړی ده او په دی باره کی یی دلیکوالانو نظر یـــی غوښتی دی .څودګه وړی مخه ونیول شی او ژبه خپل طبیعی پرمختګ ته دوام ورکړای شی .اوداسی نه شی چی یو قدم وړاندی او دوه وروسته واخلی .

ژبه دټول ملت مال دی ټول ملت خو دیو لغت دوضع کیدلو دپاره نه شی راټولیدای نوداکار دی هغـــه موسسی وکړی چی په رسمی ډول دملت ګټی سمبالوی اوملت ورباندی قناعت لری .

اوس که دامهم کار اشخاص په غاړه واخلی گومان کوم ملت او اولس به قناعت ورباندی ونه کاندی ځکه چی اشخاص تیروځی . په روسی ژبه کی یو متل دی (یو فکر ښه دی مگر دوه فکره ورنه ډیر ښه دی) زما په خیال دا به ډیره ښه وی . چی دنوو نومونو موضوع دیو مجلس له خوا نه وشی . ځکه اولس په مجلس باندی قناعت لری .

دژبی تصفیه معقول او په ځای کار دی ، مگر هغه ژبی چی انکشاف په حال کی دی که دتصفیی سره مخامخ شی انکشاف او ترویج یی کمزوری کیږی او په دی لار*کی مانع ورته پیداکیږی او غوږ بـــه گټو سر به ورباندی کښېږدو .

راځی چی او مړی خپلی ژبی ته دترویج او انکشاف حق ورکړو او کوښښ وکړو چی په ټولنیز ژوند کی زموږ ژبه عمومیت پیدا کړی ، کله چی دا کار صورت ونیسی اود ترویج له پلوه ژبه خپل وړ مقام ته ورسیږی بیا به تصفیی ته بډی راووهو ، مگر داتصفیه به په اغراق او افراط نه وی ځکه چی اغراق او افراط پـــه هیڅ کار کی گټور نه دی . کوم نوی شیان چی دنوو نومونو سره زموږ ټولنی ته راځی لکه راډیو ، تلویزیون ، دداسی شیانو نوم بدلول ښه نه بریښی ، ځکه چی دغه شیان چی په کوم هیواد کی کشف شوی دی دخپل نامه سره یوځای یی صادر کړی دی . او په زیاتره هیوادونو کی پـــه هماغه نامه یادیږی چی دکشف هیواد ورباندی ایښی دی . مثلاً (سپوتنیك) دلومړی ځل دپاره په شوروی اتحاد کی کشف شو او نوم ورباندی کیښنودشو کله چی غربی نړی دی کار ته اقدام وکړ هغوی هم سپوتنیك وباله او نوم یی وربدل نه کړ .

دادژبی کمال نه دی چی دپردیو لغاتو څخه خالی وی ، په نړی کی هیڅ داسی ژبه نه شته چی دخپل لغات ونه لری . دژبی کمال دادی چی وسعت ولری لغوی پانگه یی زیاته وی ، که لغوی پانگه یی زیاته وی (واو که پردی ژبه هم وی) داکار په ردیف او قافیه کی مرسته کوی اود یو مضمون او مفهوم په ادا کی سهولیت راولی .

که موږ یو اشنا نوم او لفظ له منځه وباسو او په عوض کی یی

نوی نوم أو نوی لفظ راوړو داکار به دفعلاً دپاره گټه ونه لری او
په دی صورت کی به دوه تاوانه وکړو یو داچی اشنا لغت مو دلاسه
ورکړ او بل داچی دنااشنا خیـری‌سره مخامخ شو چی ژر به یی ونه
پیژنو او په مفهوم به یی په لوړی‌وار کی پوه نه شو اوداسی مثال
به ولری (خدای دی وکا چی مثال‌کی تیرنه وځم) لکه دیوی فابریکی
نه چی تجربه کار او پوه کاریګروباسو .او په عوض کی یی یو بی
تجربی او نابلده کاریګر ونیسو ،که داکار گټه نه لری هغه بل هم
گټه نه لری .

پای

محمد عثمان نژند .

# دنویو اصطلاحاتو وضع

داقتراح په لړ کی‌می دنویولغتونواو اصطلاحاتو ترعنوان لاندی مضمون ولوست .ډیر خوښ شوم چی دا ډول‌دژبی ضروری موضوعگانی دپښتو ژبی‌دمینانو اودنظر دخاوندانو نظریواو پیشنهادونودغونډولواود معلومولو دپاره خپریږی .زه یقین لرم چی په پای کی به ټول خپاره شوی مطالب ارزیابی شی او نتیجه به یی هغه محترم کمیسون په نظر کی ونیسی چی‌دلغتونو اواصطلاحاتو دوضع کولودپاره ټاکل شوی دی .هیله ده چی دلیکوالو ځنی نظر یی او پیشنهادونه به ددوی دکار په ښه والی کی مرسته وکړی .ددی دپاره چی گرانولوستونکو وخت می دمقدمی په لوستلو سره نه وی نیولی .نو زه‌خپله نظریه په لنډه توگه په لاندی ډول وړاندی کوم .

وایی چی هر چاته خپل مزی‌مرغلین ښکاری .که دهری سیمی د لهجی په باره کی څیړنی وشی دابه ښکاره شی چی هر چاته خپله لهجه منلی او په زړه پوری ده .دلته زمامطلب دانه دی چی یوه لهجه پربلی

غوره ده .په وینا کی دهری سیمیوګړی پوره واك لری چی په خپلی لهجی وګړیزی خو کله چی خبره دلیك سر حدته رسیږی نو هلته باید منل شوی لیك دودته غاړه کیږدواومراعات یی وکړو .ځنی وخت دیوی کلیمی دژباړی دپاره ښه اومناسبه کلیمه پیدا کول هدف وی .مثلاً یو وخت موږ د(جز بازی) دکلیمی دپاره لټه وکړه چی پښتو کلیمه ورته پیدا کړو ،څرګنده شوه چی زموږ دهیواد په ځینو سیمو کی دماشومانو دی لوبی ته (جز بازی) ویل کیده .کوم وخت مو چی خپلی لټی ته دوام ورکړ جوته شوه چی په ځینو لهجوکی ورته (دمبی) (چینتری) یا (ډیږ) وایی.یا داچی په همدی ترتیب‌موږ (خیشاوی) دکلیمی دپاره غوښتل چی دپښتو کلیمه پیدا شی.نود (للون) کلیمی د(خیشاوی) ځای ډك کړ .په دی څیړنی کی مطلب‌دادی‌که امکان ولری دټولو پښتو ژبو سیمو لغتونه دی سره راټول شی‌او لیکوال دی یی په خپلو لیکنو کی دضرورت په وخت کی استعمال کړی‌او هم دی درادیو له لاری واورول شی .

په دی ترتیب به نوی کلیمه له‌سمیز توب حالت څخه ووځی او عام استعمال به پیدا کړی . اودټولومال‌به شی .په پای‌کی دومره زیاتول غواړم چی دلغتونو او اصطلاحاتو دمعقولو او مناسبو وضع کولو طرفدار یم خو په دی شرط چی په ځانګړی‌او انفرادی توګه ونشی .

س . ش

# دنویو اصطلاحاتو وضع

زموږ دهیواد په مطبوعاتو کـی یو پخوانی دود دی چی کله یــوه موضوع اقتراح ته ولوییږی نو بیادومره سره اوږی را اوړی چــی د خپرونی مسؤل مدیر مداخلی تـــه مجبور شی او شیر ور مات کړی .څو کاله پخوا په دی مسأله چی (مسؤل) درست دی که «مسؤول» یـــو ی ورځپانی څو میاشتی خپل کاغذ ډک کړ او هیڅ نتیجه تری مرتبه نشوه. دزیری په څو را وروسته کښو کی دنوی لغت دجوړولو دلایسنس په باب اقتراح روانه ده . زمـا تیروتجربو دابنودلی ده چی دا اقتـراح به هم بی نتیجی ختمه شی . څوک چی لغت جوړ وی او یا پردی لغتونه راپښتانه کوی ددغو توصیو پروانه لری هغه خپل کار کوی او له بله پلوه دپښتو ژبی رسمی مرکزونــه نه شی کولی چی په هغو رسمی فشار واچوی که موږ کافی حوصله وکړواود پښتو ټولی لهجی راته معلومی وی او یا دداسی لغتونو جوړو نکی سره نژدی اشنایی ولرو نو به پوه شو چی د «ټولنیزو نجوالواک» ضروریوه معنی لری .

ددی پردیتوب مخه په دغـــــــواقتراح گانونه نیوله کیږی لکه ‎ه‌وسمی مشاعری ترډیره‌حده دلیکوالواو شاعرانو دزړو دبړاس درایستلو او ځینو ته یی دیو څه حق‌الزحمی‌دبرابرولو دپاره یو په ځای او وړ کار دی .

زه فکر کوم چی موږ ته دژبـــی‌په برخه کی تردی لویی اندیښنی را څرمه دی یو نیمگړی مثال زمـاخپله کورنی تجربه ده چی فکر کوم په ښارونو کی ټولو میشتو پښتنوته به هم ورڅرمه وی یوه ورځ یوه لس کلن ماشوم خپلی کوچنی خورته کیسه کوله «.... داجادوگر بیا پـــه چارپای کیښناست او اسمان کـــــی‌وخوت» ما چی دا واوریده نو مـــی ورته وویل .

پلانیکه : داچی ته وایی داپښتونه ده باید ووایی . «داجادوگر په څلوربول سپور شو او اسمان تـــه‌وخوت» دی هلك هیڅکله اس .خو یا بل دسپرلی څاروی نه دی لیدلی‌او هغه یی ترجمه کړی دی .همدلته ماته دا سوال پیدا شو چی ایا دامهمه ده چی چار پای ته څلور بول یـــا څاروی ووایی او که دامهمه ده چی‌په دی پوه شی چی «جادوگر په اس سپریږی» نه «داچی په اس کیښنی»پس له ډیره فکره دی نتیجی تـــه ورسیدم چی لغت که د.بلی ژبی وی‌نو دونی فرق نه کوی لکه ترکیب چی دبلی ژبی وی «تماس نیول» ددی‌دپاره‌ماته ناوړه‌نه ښکاری‌چی «تماس» عربی دی بلکه ددی دپاره چی په پښتو کی «تماس نیول» نه راځی او ښایی «تماس کول» تر هغی سم وی‌زما انتقاد دادی چی هغوی په نوی ترکیب کی کړکیچو پښتو لیکـــی .ددی ویجاړی مثالونه حتی په زیاتو خپرونو کی چی دپښتو ژبی دلیکـــورسمی بیلگی دی لیدل کیږی .ښاغلی دکتورزیار دپلوشی په مجله کی‌ددغی‌کړکیچو پښتو څرگندونه کړی وه‌او په رښتیا چی ښه کاریی کړی و .زماپه نظردپښتورسمی خپرونی‌په‌خپله باید دښی پښتو دانشا استازی شی.داسی نه کیږی چی نور په هماغـــه گناه گرموو چی په خپله در گرده‌هغه کوو زما په نظر اقتراح که‌په مشخصو شیانو وشی .ښه نتیجه به‌ورکړی دمثال دپاره یوی‌وړی موضوع ته اشاره کوم او هغه زما پاسنی‌یوه جمله ده چی لیکلی مـــی دی «دوکتور زیار دپلو شی» په مجله کی .

. . . ایا «پلوشی» مجله درسته ده که د «پلوشه مجله» دمجلی نوم خو پلوشه ده اودا اسم خاص دی‌چی باید کټ مټ په خپل شکل‌ولیکل شی .په عین حال کی کله چی (د)یی دمخه راشی نودپښتو دګرامر په اساس دپلوشه اخری (ه) په (ی) بدلیږی .ایاپه دی‌برخه کی کوم‌قرار یا معیار شته ؟

یوه بله وړه پوښتنه داده چی‌کله چی موږ وایو :

احمد ، محمود او ګلالی ... نـو«راغلی» صحیح ده که «راغلل» که اکثریت ته اعتبار وی نـو «راغلل»صحیح بریښی خو که ووایو ګلالـی تورپیکی او احمد نو «راغلل» کـه«راغلی» که دکمیت مساله نه وی نو ایا هر نوم چی په اخر کی راځی‌اعتبار لری که څنګه ؟

ددغو پورتنیو په ځواب کی زه‌نه پوهیږم او امید دی تاسو ګران لوستونکی یی راته حل کړی خو زمااصلی هدف دهغو اندیښنو یادول و چی دمقالی په لومړی برخه کی می‌عرض کړی .د«ذخیره القرأ» لیکوال معلومول اودا چی پلانکی شاعر دی‌دچا زوی دی په خپل وار دمحقق له نظره هم دی خو دژوند د پښتنو چی‌زموږ دپښتو لوستونکی دی هم‌توجه په کار ده .

دولت محمد سپر کښ

# په پښتو ژبه کې نوی اصطلاح گانی

څو مره چې دنړۍ دهیوادونو ترمنځه په سیاسی ،اقتصادی ،علمی، تخنیکی اوکلتوری اړخونو کی اړیکی زیاتی شی په هماغه اندازه یی ژبی هم سره داصطلاح گانو په برخه کی نژدی کیږی .او اصطلاح گانی یی سره زیاتی تیرو بیر کیږی . پښتوژبه هم له دغه حکم نه وتلی نه ده، لکه څنگه چی نورو ژبو ته اصطلاح گانی ورننوځی پښتو ژبی ته یی هم دورتگ همدغه لاره ده .او دایی په حقیقت کی دشتمنیدو یوه غوره لاره گڼله کیږی .که انگلیسی ژبی ته وکتل شی .نو قاموس ،یی داروپایی ژبو داصطلاح گانو په واسطه شتمن شوی دی .په تیره هغه اصطلاح گانی په کی ډیری لیدلی کیږی چی دیونانی ،لاتینی او رومی ژبو څخه ورغلی دی .انگلیسی ژبی ته چی دنورو ژبو نه ډیری اصطلاح گانی ورغلی په دی باندی یی ارزښت له لاسه نه دی ورکړی بلکی هم په شفاهی او هم په لیکلی ډول ډیروبهرنیو پوهانو او متخصیصینو ته ډیر لوړ ارزښت لری .اود لیکلی ډول نه یی ډیری گټی تر گوتو کوی .

نن ورځ دبل هر وخت نه دعلمی او تخنیکی انقلاب په سبب په ژبو کی داصطلاح گانو تگ راتگ زیاته برخه لری نن ورځ دبیلا بیلو ژبو

لغتونه ترمینالوجی او څه ناڅه فرا زیالوجی دبین الاقوامی کیدو په حالت کی دی .همدارنگه دبیلا بیلوژبو ترمنځه نحواو سبکونه سره نژدی کیږی ،دیوی ژبی نه بلیژبی‌ته سره په تللو او تیرو بیرکیدو کی دی .

دترمینالوجی په برخه کی دتر . میناالوجی بین المللی موسسی دنورو ضروری پوښتنو په ډله کی داهم‌تر غور او څیړنی لاندی نیولی ده چی دنړی په ژبو کی ترمینالوجی باید څنگه وی ؟په دی برخه کی لکه څنگه چی‌له څیړونو څخه جوتیږی‌پوهان په دی نظریه دی چی په شعورانه توگه په ژبو کی ترمینالوجی هم دمحتوا او هم دځرگندولو له مخی سره نژدی شی . (وگ. ن.ك.سوخوف ،په علمی، تخنیکی برخوکی بین الیللی کار په علمی ،تخنیکی... نومی کتاب کی مسکو ۱۹۷۷) .

کله کله ترمینا لوجی په څوژبوکی سره کټ مټ یو شان وی او کله داسی وی چی هماغه اصطلاح په ځینو نورو ژبو کی کټ مټ یوشان نه وی لږو ډیر توپیر سره لری ،لکه دفوسفورس اصطلاح چی یوه کیمیاوی اصطلاح ده په ځینو ژبوکی‌سره دغږ او معنی بیخی یو شان ده مگر په ځینو ژبو کی دغږ له مخی‌یو څه بل ډول ده .

اوس به موږ دی خبری ته‌راشوچی په پښتو ژبه کی داصطلاحگانو سره څه ډول لاره او چلند غوره‌شی؟څومره چی لیدل کیږی نن ورځ پښتو ژبی ته له یوی خوا دنورو ژبو نه‌اصطلاح گانی دبیلا بیلو لارو څخه ورننوځی له بلی خوا په خپله ځنی‌پښتنانه لیکوال په پښتو کی ځنی اصطلاح گانی چی دنورو ژبو څخه‌پښتو ژبی ته راغلی دی او پښتانه په کی دمعنی او ویلو له مخی هیڅ‌ربړ نه حس کوی ،پښتو کوی .

موږ په پښتو ژبه کی داصطلاح‌گانو په برخه کی دوه ستونزی لرو یوه ستونزه دهغو اصطلاح گانو په باره کی ده چی نوی پښتو ژبی ته ننوځی ، بله ستونزه دزړواصطلاح گانو دپښتو کولو په باب کی ده ،دغه موضوع باید حل شی،چی پښتو ژبی ته نوی اصطلاح‌گانی په څه ډول ومنلی شی ، کټ مټ‌په خپله بڼه یعنی په کوم ډول یی چی څوك ووینی په هماغه ډول یی‌پښتو ته ننباسی او که کوم بدلون

په کی راولی ؟ بله خبره دزړو اصطلاحگانو په برخه کی ده کومی اصطلاح گانی چی دپیړیو پیړیو څخه پــه پښتو ژبه کی ځای شوی دی ، په ویلو او معنی کی یی پښتو ته کومه ستونزه په سترگو نه ورځی ایا دا دپښتو شی او که نه په خپل راغلی حالت پریښودل شی ؟

زه لومړی دلومړی برخی اصطلاحگانو په باب خپله نظریه په لنډ ډول څرگندول غواړم او بیا به ددوهم ډول اصطلاحگانو خوا ته مخه راوگرځوم

کله چی موږ دکومی بهرنی اصطلاح سره مخامخ کیږو ، کټ مټ اخیستو او ژباړلو په باب یی باید غورو شی و کتل شی چی په نورو ژبو کی ور سره څه ډول رویه غوره شوی ده په نورو ژبو کی په خپله بڼه اخیسته شوی دی که په هره ژبه کــــی یـــــی ژباړلی ده یا داچی په ځینو ژبو کی یو شان ده او په ځنو کی په بل شان په دی وخت کـــــی باید دخپلی ژبی خواصو او همدارنگه عامه ذهنیت ته و کتل شی ، که د نیولوگیزم داساسو نو او د لغت جوړیدو دقوانینو سره ورته پښتو ژبـــــه کی داسی لاره پیدا کیده چی ژباړنه یا نوی لغت جوړونه ورتــه د خوښونی او خپریدنی چـانس زیات لری ، نو ښه به داوی چی په همدغه ډول اقدام په برخه کی وشی او که نه باید په خپل حال په داسی ډول پریښودل شی چی دپښتو ژبی دمورـ فو لوجی په چوکاټ کی راشی دلته دومره ویل کیږی چی په خپل حال پریښودلو په وخت کی یی تشریح کول ضروری دی هره اصطلاح چی پښتو ژبی ته نوی ننوځی باید په برخه کی یی ضروری تشریحـا ت وړاندی شی چی لوستونکی او اوریدـ ونکی یی په معنی باندی ښه پوه شی او خبره دابهام څخه ووځی دلته باید داخبره په ټینگه سره وویل شی چی کومه اصطلاح یا دعمومـی ادبی ژبی لغت راځی . که په نورو ژبو کی ژباړل شوی وی .، په پښتو ژبه کی دی هم کوشش وشی چـی دلغت جوړونی او نیولو گیزم داساـ سونو سره سم پښتو کړی شی .

اوس مخه هغو اصطلاح گانو تــه راگرځوله کیږی چی دپیړیو پیړیو

په پښتو ژبه کی دمعنی اولغاتو په ډول خدمت کوی .دغه ډول اصطلاح
گانی که پرته دسیاسی یا ټولنیزوملحوظاتو څخه دپښتو ژبی‌په سوچه
لغاتو اوړی او په پښتو ژبه کـی‌ورته یا سوچه اصطلاح دکومی‌لهجی
نه اخیسته کیږی .او یا ورته نوی‌جوړیږی دایو اضافی اوغیر ضروری
کار دی سر بیره پردی گټی نه یی‌تاوان‌زیات لیده کیږی ځکه تراوسه
پوری دیو ډول اصطلاح سره خلک‌اشنا وو هم یی په معنی پوهیدل
او هم یی په تلفظ کی کوم ربړ نه لیده او هم یی په ښه ډول استعما-
لولی شوه .اوس نو چی په پښتوژبه کی نوی اصطلاح وینی یایـی
اوری ضرور دپوړتنیو ستونزو سره‌مخامخ کیده منځ ته راځی ،ښه به
داوی چی په اشنا مستعارو اصطلاح‌گانو باندی دژباړلو په وخت کـی
داسی اقدام ونه شی چی دخلکـوحساسیت را پورته کړی .

محمد ابراهیم عطایی

# د نویو اصطلاحاتو وضع

دنویو اصطلاحاتو په اقتراح کی‌چی کومی لیکنی تر اوسه شوی او که تر دی وروسته هم دا غړکـه وشربل شی نو کوچ به یی هغه وی چی ښاغلی (س ، ش) دزیری پـه (۲) یا پر له پسی ۲۹ گنه کی راـ ایستلی دی .

زه چی په دی باب څو لاندی‌کرښی لیکم نو تاسی هیڅ په دی هیله مه اوسی چی گواکی یوداسی نوی‌کشف به دروړاندی کړم‌چی دروانی معضلی حل ته به قناعت ورکوونکی جواب‌وی .

حقیقت خو دادی چی کله موږ دتمدن دعناصرو سره مخامخ کیږو نو ډیر لږ دنورو دتجربو څخه استفاده‌کوو دا په رښتیا یو غټ زیان دی او تجربی په ثبوت رسولی ده چی‌کومه ټولنه له دغسی حال سره مخامخ کیږی هغه ورځ تر بلی شاته پاتیږی په خاص ډول دغسی ناروغی چی ټولنی دفرهنگ په ځان ورغلی‌ده نو دټولنی نور موسسات یی هم تر ناوړی اغیزی لاندی له ودی څخه غور ځولی دی .زه باید دا سمدستی خپلی غاړی خلاصی کړم چی دنورو دتجربو څخه گټه اخیستل دامعنانه لری چی دیو بیگانه کلتور عناصرو ته پر خپل کلتور غلبه ورکول شی‌بلکه

دهغو لارو پیژندل او عملی کول مطلب دی چی یوی بلی پر مخ تللی ټولنی دخپل کلتور عناصرو ته پرهغه لار چټك بریالیتوب گټلی وی.
که مقدمه اوږده وی بخنه غواړم اوس اصلی مطلب ته راځم دنوو اصطلا حاتو په باب ما مخکنۍدوی وروستنی مقالی می لوستلی چی مقالی نه دی لوستلی یوازی دښاغلی (س ،ش) ساده او پریکړی خبری می زښته ډیری خوښی شوی داچی نن موږ دژبی سره څه کوو زموږ په سمه نا سمه لار خوبه سبانی ځوانان قضاوت ضرور کوی خو داګیله به هم ور سره وی چی زموږ دننیو غلطیو په نسبت دوی ته هم زیان رسیدلی او مجبوربه وی چی زموږ دناسمو چوکاټونو په اصلاح دخپل عمر یوه برخه بیځایه مصرف کړی .

ښه دا هر څه چی وی داد هغوکار دی موږ نن دیوی جدی پوښتنی سره مخامخ یو او غواړو چی جدیجواب باید ورته برابر کړو . ایا ژبه دافهام او تفهیم یوه وسیله نه ده ؟

حتماً وایو هو :

ایا دا وسایله چی هر څومره ساده او دډیرو خلکو دپوهیدلو دپاره خدمت وکړی ښه به وی ؟

هو بیا هم هو ! !

تر دی مکرر هوهو وروسته نوُمساله پردی ټکی دریږی چی موږ خو هم ژبه لرو او هم خپل کلما تاو لغات لرو .خو دا کلمات او لغات مو دهغو شیانو او جریاناتو له پاره کافی نه دی چی دعصر او تمدن په ژوند کی ورسره مخامخ کیږو . په دی برخه کی نو موږ ددی پوښتنی سره مخامخ یو چی هغه نوی اصطلا حات چی دنوی عصر او تمدن څخه یی په خپل ټول قوت زموږ پر ژبه راغورځو دښاغلی (س ،ش) په اصطلاح پښتانه کړو ؟دموضوع دښیخیږنی روح نودغه ټکی دی :

ددی مسالی په برخه کی چیموږ بحث کوو نو یو ځل به داپوښتنه هم وکړو چی !ایا دنورو ژبو خلك هم له دغسی مسلی سره مخامخ شوی دی ؟

جواب یی پوره مثبت دی حتمی غلطی او ناسمی لاری یی هم په

مخه اخستی دی‌خو ترېو وخت وروسته یی پر خپلو غلطیو شرافتمندانه اعتراف هم کړی دی .

په اتلسمه پیړی کی دنشنلستی نهضتونو دپیدایښت سره په اروپا کی انگلستان او فرانسه په لویه سیالی سره اخته وه او ددغو سیالیو یوه منفی اغیزه یی دژبی په برخه کی‌وه. یوه افراطی نشنلست فرانسوی ته دا ډیره بده رسیدله چی دانگلیسی اصطلاح په خپله ژبه کی واوری همدا رنگه یو انگلیسی ته دغه تکلیف ورپیښ و .

ددغی وضعی څخه دهغه وخت یوه کسان چی دفرهنگ رښتیانی وچتوالی یی‌غوښت ډیرپه تنگ وخو دامیدان ترهغه وخته پوری تود وساتل شو ترڅو چی دغو واقعی فرهنگ‌دوستانو قدرت وموند .دغه مشکل ترنولسمی پیړی داروپا یو شمیر فرهنگی ټولنی په دی مصروفی وساتلی څو دغه ناروغی په شلمه پیړی کی ترکی‌ته راورسیدله دترکی‌ژبی ژبوروداغی‌که تر هغه وخته پوری شربله څو ددترکیی په‌انقلاب کی‌لاتین لیک‌دودته ترکیه ورولویدله .

تر لوړی لویی جگړی وروسته داناروغی ایران ته راغله چی دلته به دهغه هیواد د یوه لیکوال(داکتر بازرگاد) هغه جملی راوړم چی «دتاریخ فلسفه سیاسی» لوړی‌جلد دمقدمی په (٢٦) مخ کی یی راوړی دی .

«چند سال قبل ناگهان فکری درایران پدید آمد که کلمات خارجی را اعم از فرانسه وانگلیسی وعربی به زبان فارسی آمده ومعمول گردیده است بفارسی تبدیل دهند ومعادل فارسی آنرا جستجو کرده از میا ن کلیمات مرده دو هزار سال بیش‌زبانهای قدیم ایران بیانید واحیاکند ویا اگر نتوانستند کلمه واصطلاح‌جعل کنند واز خود بسازند ،این‌عمل را که مؤسسه بنام فرهنگستا ن بعهده گرفت از بزرگترین اشتباهات بود بهترین دلیل این اشتباه انکه موفق با انجام مقصود نگشت ونتوانست اغلب کلیماتی را که وضع نموده است معمول دارد »

دا اشتباه خوهلته اقلاًیوی‌موسسی کوله چی دادی نن غندل کیږی اوس نو دی ته باید فکر وشی چی په هغه ځای کی به څه حال وی چی هر په

تور وسپین پوه دژبی اوادب دوستی په دوددخیلی لیکنی له پاره چوکاټ وټاکی .

په خواشینی باید ووایو چی پښتو نن دغی کندی تــه ورغوځیدلی ده نظریات به بیل بیل وی خوپه مشخص ډول په دغه برخه کی که دنورو له تجربو څخه گټه نه اخلو نودابه زموږ هم لویه اشتباه وی .

دامسئله زموږ دفرهنگ په برخی پوری تړلی یوه جدی مسئله ده چی په خاص ډول زموږ دژبی صلاحیت لرونکی پوهان یی باید تر غورلاندی ونیسی .تر هـر څه وړانـدی پښتوټولنی ته مخ باید وگرزوو چی په دی باب باید دخپل دعلمی او رسمی موقف په استفاده یو جدی اقـدام وکړی دژبی په باب ددغی مؤسسی بی‌طرفی اوبی‌تفاوتی خبره‌یوه نازك پړاو تـه رسـولی ده او که دغه وضع دوام وکړی نو لیری نه ده چی پښتو به په خطرناك ډول داسی تجدید شی چی بیا به څوك نه په پوهیږی لکه چی همدا اوس په ډیروموادرو کی همداسی شویده چی‌مثال یی ښاغلی (س ،ش) په خپله مقاله کی راوړی دی .

زه نور څه نه وایم خو په پای‌کی دا یوه خبره کوم چی پښتو ټولنه باید یوازی ددغی اقتراح په کیدلـو قانع نه اوسی بلکه دهغه صلاحیت څخه باید استفاده وکړی چی په دغه برخه کی قانونی ورکول شوی دی .






